د کتاب ځانګړنې

د کتاب نوم: د ابن خلدون ژوند، اند او فلسفه

ليکوال: ملک اشفاق

ژباړن: زاهد خليلي zahidkhalili@yahoo.com

کمپوزر: په خپله ژباړن

ډيزاين چارې: رحمن الله بهير

خپرندوی: مومند خپرندويه ټولنه – جلال اباد

بريښنا ليک: Momand.books@gmailcom

چاپ کال: ۱۳۹۲ / ۲۰۱۳

چاپ وار: لومړی

چاپځای: د مومند خپرندويې ټولنې تخنيکي څانګه

# فهرست

ډالۍ

هغو ته چې د لویدیځ لویدلي او ویجاړوونکي ټولنیز او سیاسي اخلاق یې پیژندلي دي.

ز.خ

**د ژباړن خبرې**

مسلمانو پوهانو نړۍ ته په هر علمي ډګر کې ډېر خدمتونه کړي دي، داسې پوهان لرو، چې د زیاترو علومو بنسټونه یې ایښي دي، په خپلو افکارو او لیکنو سره یې د نړۍ نقشه بدله کړې ده او د خپلو لیکنو په واسطه یې علمي انقلابونه راوستي دي.

په منځنیو پیړیو کې، چې لویدیځ د جهالت په تورتم او تیارو کې ډوب وو، د لویدیځ برعکس منځنی پیړۍ په ختیځه اسلامي نړۍ کې د رڼا او روښنایی څخه ډکې وې، علمي څېړنې او لیکنې کیدې، مسلمانو پوهانو په مختلفو علومو کې کتابونه ولیکل او په دې کار سره یې راتلونکي اسلامي امت تهویاړونه پرېښودل.

علامه ابن خلدون د هغو سترو علماؤ څخه دی، چې په علومو کې ډیرې لاسته راوړنې لري، هغه دټولنپوهنې د علم د لومړنیو پوهانو څخه شمیرل کیږي، هغه په لومړي ځل د تاریخ د فلسفې اساس کیښود، د تاریخ د علم په اړه یې زیاتې څرګندونې وکړې، چې (مقدمه) یې یو شهکار اثر ګڼل کیږي په داسې حال کې چې دده څخه مخکې هیڅ عالم د تاریخ په اړه څرګندونې نه درلودې، ابن خلدون په لومړي ځل د قومونو د عروج او زوال عوامل وڅیړل، د ښوونې او روزنې، جغرافیې، حکومت کولو او نورو موضوعاتو په اړه یې لیکل وکړل.

په پښتو ژبه کې د مسلمان پوهانو د ژوند او فلسفو په اړه ډېر کم کتابونه لیکل شوي یا ژباړل شوي دي، زموږ اکثره پښتانه خپل مسلمان اتلان په درست ډول نه پیژني؛ ځکه، چې کار ورته نه دی شوی؛ خو، برعکس په کتابتونونو کې اکثره غیر علمي کتابونه موندل کیږي، د بې مفهومه شعري ټولګو، غورچاڼونو او بې معنا ناولونو کتابونه زیات موجود دي، که شعر یا ناول تاریخي، سیاسي او اخلاقي اړخ ولري، بیا هم څه به په کې وموندل شي، کنه ددې ..... څخه هیڅ ګټه نه شي تر لاسه کیدای.

د قلم د خاوندانو څخه مې غوښتنه داده، چې پښتو ژبه په علمي آثارو ښکلې کړي، تر څو نوی ځوان نسل د علمي پرمختګ په لاره یون وکړای شي، خپل مسلمان اتلان او پوهان وپیژني، د هغوی د بریا رازونه خپل او مبارزه، فکر او ژوند یې خپل سرمشق وګرځوي.

د کتاب لیکوال، ملک اشفاق د ارود ژبې تکړه لیکوال دی، مخکې یې هم په پښتو ژبه د ځینو فیلسوفانو د ژوند په اړه کتابونه ژباړل شوي دي، په اردو ادب او سیاست کې دوه ماسترۍ لري، زما ژباړه کیدای شي، ځینې نیمګړتیاوې ولري، چې د هغې بښنه غواړم.

په درنښت

د پښتو ژبې د علمي پرمختګ په هیله

زاهدخلیلي

## تقریظ

په اسلامي امت کې ډېر داسې پوهان شته، چې په عملي ډګر کې په نړیواله سطحه نوښت ګر او تاریخ جوړونکي شخصیتونه دي، د هغو له جملې څخه یو هم علامه ابن خلدون دی، چې په ټولنپوهنه (علم الاجتماع) کې نړیواله پیژندل شوې څیره ده او د هغه کتاب (المقدمه) د ټولنپوهنې د اصلي منابعو څخه ده.

نوموړی په اتمه هجري قمري پیړۍ (۷۳۲- ۸۰۸هـ ق= ۱۳۳۲- ۱۴۰۶م ) کې په تونس کې زیږیدلی دی او په قاهره کې میشت شوی دی.

نوموړی څو تألیفات لري، چې تر ټولو غوره یې (المقدمه) ده، چې د هغه د تاریخ دکتاب سریزه ده، او د اهمیت له کبله نړیوالو ژبو ته ژباړل شوی ده.

زما په آند، پښتو ژبه د هغه د علمي آثارو څخه بې برخې ده، له دې کبله زه فکر کوم د زاهدخليلي په زيار د ابن خلدون اړوند ليکل شوي اثر پښتو ژباړه په ځاى او د تقدير وړ کار دى، تر څو نوموړى مسلمان شخصيت ددې ژبې ويونکو ته ورو پيژندل شي.

ما د ډيرو مصروفيتونو له کبله د کتاب د بشپړ لوستلو فرصت ونه موند، تر څو يې دقيقه ارزونه وکړم؛ خو، دا وايم، چې دا د ژباړې په ډګر کې د زاهدخليلي ښه هڅه ده او کيداى شي، چې ځينې نيمګړتياوې ولري.

په هر حال، د هغه هڅه د تقدير وړ ده او له الله تعالى څخه ورته د لازياتو برياوو غوښتنه کوم.

دوکتور عزيزالرحمن

ننګرهار پوهنتون

د شرعياتو پوهنځي استاد

## د ليکوال خبرې

د لويديځو قومونو دويم ژوندون (رنسانس) د مسلمانو او ختيځو پوهانو د فکر منځته راتګ دى، د منځنيو پيړيو مسلمانو مفکرينو د خپلو څيړنو، تجربو او صلاحيتونو په واسطه نوي علوم رامنځته کړل.

د مسلمانو مفکرينو هرې طبقې په طبيعي علومو کې زيات اختراعات وکړل، په ادب، هنرونو، طبيعت، طب او جراحي، کيميا، رياضي او ټولنيزو علومو کې يې شانداره لاسته راوړنې درلودې.

د اروپا په علمي ادارو، کالجونو او پوهنتونونو کې پيړۍ، پيړۍ د مسلمانو پوهانو د کتابونو نه د اساسي کورسونو په توګه ګټه اخيستل کيده؛ خو کله چې په مسلمانانو باندې د څيړنې دروازې بندې شوې؛ نو اروپا د مسلمانو پوهانو د

رامنځته شویو علومو په اساس قوي او علمي شوه او بیا (لویدیځ) د مسلمانانو د جهالت پورې زیات خندل.

د دغه جمود په پېر کې زیات شمیر لویدیځو علماؤ د مسلمانو پوهانو څېړنې او لاسته راوړنې د خپلو قومونو پورې د تړلو هڅې کولې، د ابن خلدون سره هم د همدغسې کار کولو هڅه شوې وه؛ خو، نویو څېړنو اروپايي پوهان بیا اړ کړل، چې د دغه ستر مفکر او تاریخپوه علمیت ته قائل شي، اوس په اروپایې او امریکایي پوهنتونونو کې د ابن خلدون شخصیت د یو اقتصاد پوه، ټولنپوه او تاریخپوه په ډول منل شوی دی. د امریکا پخواني ولسمشر رونالد ریګن په یوه تلویزوني مرکه کې ابن خلدون ته نیکې پیرزوینې وړاندې کړې او ویې ویل، زه نن ځکه د امریکا ولسمشر یم، چې ما د ابن خلدون د فلسفې نه ډیره ګټه اخیستې، د هغه د فلسفې نه اغیزمن شوی یم او هغه مې په خپل ژوند کې پلي کړه؛ ځکه، نو هغه زما خوښ شخصیت دی. ددې نه معلومیږي، چې د ابن خلدون علمي شخصیت په نړۍ باندې څومره ستره اغیزه لري.

ملک اشفاق

د کتاب لیکوال

## کورنۍ یې

د ستر مفکر، تاریخپوه، ټولنپوه او سیاست پوه ابن خلدون شجره په دې ډول ده.

ابو زید ولي الدین عبدالرحمن بن محمد بن محمد بن الحسن بن محمد بن جابر بن محمد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن خلدون، په ابن خلدون سره پیژندل شوی او د عربو د یمني قبایلو سره یې اړیکه درلوده.

د ابن خلدون لومړي نیکونه د لومړی هجري پیړۍ په وروستیو کې د یمن څخه اندلس ته ولاړل، دا هغه وخت وه، کله چې بربریانو اندلس په بشپړ ډول نیولی وه.

ددې کورنۍ لومړنی شخص چې اندلس ته ولاړ، هغه په خلدون سره پیژندل کیده، د هغه نوم خالد بن عثمان بن خطاب بن کرب بن معدی بن الحارث بن وائل

بن حجر وه؛ ځکه، نو موږ ویلی شو، چې دې کورنۍ د حجر د قبیلې سره اړیکه درلوده، دغه قبیله د حضرموت په سیمه کې د زیات عزت، شهرت او علم درلودونکې وه، د حجر د قبیلې یو شاخ کنده د ابن خلدون د نیکونو د کورنۍ لومړني اشخاص وو.

په دې وخت کې د کنده د قبیلې مشر وائل بن حجر وو، یو مشهور روایت دی، چې وائل بن حجر د حضرت محمد (ص) په خدمت کې هم حاضر شوی وو او وائل بن حجر صحابي وو.

وائل بن حجر د حضرت محمد (ص) په مخکې اسلام قبول کړی وو او پیغمبر علیه السلام د هغه اولاد ته دعاء هم کړې وه.

ابن خلدون چې په خپل کتاب (مقدمه) کې د قومونو د عروج او زوال کوم اصول بیان کړي، د هغې نه څرګندیږي، چې د ابن خلدون په شجره کې څه شک شته دی.

څرنګه، چې ابن خلدون او نیکه یې خلدون تر منځ لس پشته واټن دی؛ خو، د ابن خلدون د اصولو مطابق باید دا شل یا یوویشت پشتونه وي، ابن خلدون په خپله مقدمه کې وایي، چې په هره پیړۍ کې درې پشتونه ضروري دي، د ابن خلدون او نیکه تر منځ یې اووه پیړۍ واټن موجود دی؛ ځکه ، نو د ابن خلدون شجرې د کره والي په اړه شک شته دی؛ خو، زموږ لپاره دا دومره اړینه نه ده، موږ باید د ابن خلدون د سیاسي، علمي او عملي ژوند په اړه مالومات تر لاسه کړو؛ ځکه، د عربو مشرانو شجرې په دویمې او دریمې هجري پیړیو کې لیکل شوي دي، کوم چې ډیرې مهمې ندي.

په تاریخ کې د ابن خلدون د کورنۍ نوم په لومړي ځل په دریمه هجري پیړۍ کې ذکر شوی دی، د ابن خلدون کورنۍ په دغه وخت کې د اندلس په اشبیلیه ښار کې اوسیده.

ابن خلدون په خپله وایي، چې دده کورنۍ په دغه وخت کې د قومیت د عصبیت ښکار وه، چې په دې سره یې کورنۍ ډیره قوي وه، ددې عصبیت په وجه د قریشي واکمنانو او اموي کورنۍ پر ضد د عصبیت جذبه اوج ته رسیدلې

وه، په همدې وجه د ابن خلدون کورنۍ په حکومت کې زياته ونډه او اغيز درلوده، د ابن خلدون د کورنۍ يو مشر کرب په ۲۸۰ هـ کال کې د اشبيلي د حاکم پر ضد پاڅون وکړ، حکومت يې تر لاسه کړ او خپلواک دولت يې رامنځته کړ، دغه حکومت د څلورمې هجري پيړۍ د نيمايي او د اموي خلافت له منځه تلو پورې دوام وکړ او ښه په شان او شوکت سره يې حکومت کاوه.

ددې وروسته د کرب اولادې د بنو عباد په حکومت کې هم ډيره ونډه درلوده، د بنو عباد کورنۍ د پنځمې هجري پيړۍ پورې حکومت وکړ او د يمني عربو دغه کورنۍ (خلدون کورنۍ) په کې زيات اغېز درلوده؛ خو، کله چې په اوومه هجري پيړۍ کې د اندلس عيسايانو په اشبيليه کې حکومت جوړ کړ؛ نو د ابن خلدون کورنۍ افريقا ته هجرت وکړ او په تونس کې يې د بنو حفص دربار ته لاره پيدا کړه.

د بنو حفص په دربار کې دغې کورنۍ د حکومت ښې څوکۍ په لاس کې درلودې، د خلدون د کورنۍ په اړه په دې باندې ښه پوهيږو، چې دوی تل د حکومت کولو خوبونه ليدل.

که د ابن خلدون شجره صحيح ومنو، کومه چې د هغه کورنۍ د کنده قبيلې سره تړي؛ نو، دا خبره جوتيږي، چې د ابن خلدون کورنۍ تل د حکومت په سياسي کارونو مداخله کوله؛ خو، د حکومت کولو خوب يې پوره نه شو.

## د علامه عبدالرحمن ابن خلدون زوکړه

عبدالرحمن ابن خلدون په خپل ليکل شوي کتاب کتاب العبر کې ليکلي، چې هغه د ۷۳۲ هـ کال د روژې په لومړۍ نيټه، چې د ۱۳۳۲ هـ کال د مې د مياشتې د ۲۷ نيټې سره سمون خوري، د تونس په يوه کلي قروان کې وزيږيد.

ابن خلدون د خپل کوچنيوالي او کورنۍ په اړه هيڅ نه دي ليکلي؛ خو، يو فرانسوي څيړونکی پروفيسر فشل د ابن خلدون د پيدايښت کيسه کړې، چې ددې کيسې څخه د ابن خلدون لياقت او پوهه په ښه ډول مالوميږي.

دغه پروفيسر کيسه داسې بيانوي، چې يوه ورځ د قروان په جامع جومات کې ډير خلک راټول شوي وه، په دې وخت د ابن خلدون عمر نهه يا لس کاله وه، ابن خلدون دې راټولو شويو خلکو ډير په ژور نظر کتل؛ ځکه، د هغه لپاره دا پيښه يو غير معمولي پيښه وه، په دې خلکو کې علماء، قاضيان او مهم مشران موجود وه.

ابن خلدون پوښتنه وکړه، چې دا خلک ولې راټول شوي دي، ورته وويل شول، چې سيسلي په تونس باندې يرغل کړی او څو مهم ښارونه يې نيولي دي، دا غونډه په جامع جومات کې ځکه وشوه، چې ټول علماء او قاضيان دعا وکړي او دښمن د هيواد څخه وتښتي، کله چې ابن خلدون دا واوريدل؛ نو ويې ويل، چې علماء او قاضيان ولې داسې کار کوي؟ خلکو ته په کار دي، چې وسلې واخلي او دښمن په خپله د هيواد څخه وشړي.

ددې پيښې د درستوالي کوم قوي ثبوت نشته؛ خو، ددې پيښې څخه د ابن خلدون د ښه ذهانت اندازه کيدای شي.

## ښوونه او روزنه

ابن خلدون د خپل کتاب کتاب العبر په شپږم ټوک کې د خپلې ښوونې او روزنې په اړه په تفصيل سره خبرې کړي دي.

هغه د هغه وخت د مروجو علومو او کتابونو په اړه په تفصيل سره ذکر کړی دی.

لومړنی ښوونه يې د خپل پلار نه تر لاسه کړه، د هغه پلار د خپل وخت وتلی عالم او فقيه وه، د هغه نوم محمد بن خلدون دی.

کله، چې تونس ته راغی؛ نو سياسي ژوند يې پريښود او د لغاتو د علم تدريس يې پيل کړ، ابن خلدون د خپل پلار څخه فقه، تفسير او د حديثو علم زده کړ، سربيره پر دې يې، قرائت، کتابت، د نحوې اصول او د ادب تدريس يې هم ورکړ؛ ځکه، نو موږ ويلی شو، چې د ابن خلدون لومړنی استاد د هغه خپل پلار دی.

ابن خلدون د خپلو ښوونکو په اړه په ډېر تفصیل سره خبرې کړي دي، د ابن خلدون د خبرو څخه مالومېږي، چې د هغه استاذان ډېر لايقه او پوه خلک وه، په دې سره د هغه د قوي علم اندازه مالومېږي، هغه د خپلو ښوونکو په اړه ډېرې غير معمولي خبرې کړي دي.

ابن خلدون په خپل کتاب (مقدمه) کې ددې خبرې ذکر کړی، چې کوم کتابونه هغه لوستل هغه په تونس کې ډېر کم پيدا کيدل.

په هغه وخت کې د مصر د الازهر پوهنتون د مروجو علومو وتلی تدريسي ځای و؛ خو، په تونس کې بيا داسې نه وه، ابن خلدون چې کومې زده کړې کړي، بې شکه چې د ازهر د پوهنتون سره برابرې نه وې؛ خو، هغه چې کوم علم په تونس کې لاسته راوړ، هغه ډېر اوچت وه.

ابن خلدون په کوچنيوالي کې قران کريم حفظ کړی وه او په قرات باندې يې پوره برلاستيا درلوده، هغه کولای شول، چې قران کريم په اوو لهجو باندې تلاوت کړي.

د ابن خلدون خپله خبره ده، چې هغه د حديثو مشهور کتابونه موطا، صحيح مسلم شريف او صحيح بخاري شريف لوستلي وه.

سربيره پردې هغه د مالکي مذهب مشهور کتاب (مدونه) لوستلی وه او په فقهي اصولو باندې يې برلاستيا حاصله کړې وه.

ابن خلدون وايې، چې هغه د مشهور کتاب (تسهيل) نه نحو او د لغاتو علم زده کړی وه، سربيره پردې د پخوانيو عربو شاعرانو د شعرونو ديوان (ديوان حماسه) او عباسي دور زياتې قصيدې او نظمونه يې هم لوستلي وه.

د نورو مروجه علومو په اړه ابن خلدون وايې، چې د منطق علم، د کلام علم او د فلسفې په اړه يې زيات کتابونه مطالعه کړي.

زما په نظر کله، چې ابن خلدون په قاهره او سکندريه کې وه؛ نو، هغه د فلسفې او نورو علومو مطالعه هلته وکړه؛ ځکه، د ابن خلدون د تاريخ او ځينو

نورو تاریخي کتابونو نه مالومیږي، چې همدغه وخت کې ابن خلدون فلسفه زده کړه او په علم کې یې زیاتوالی راغی.

ابن خلدون مراکش، غرناطې، قاهرې، حلب او دمشق ته سفرونه کړي وه، دې سفرونو هم د ابن خلدون په علم او تجربو کې زیاتوالی راوست، ابن خلدون وایي، چې د شلو کلونو په عمر کې یې په تونس کې خپلې زده کړې بشپړې کړې وې او د خپلو ښوونکو څخه یې اسناد هم ترلاسه کړي وه.

د هغه وخت د اصولو مطابق، کله چې به یو شاګرد د خپل استاذ څخه مروجه علوم زده کړل؛ نو، استاذ به یې یو سند هم ورکاوه، ددې سند مطلب دا وه، چې هغه شاګرد درس بشپړ کړی دی او اوس هغه کولای شي، چې تدریس وکړي، په سندونو کې به د ښوونکو نوم هم لیکل کیده.

په ازهر پوهنتون کې داسې سندونو رواج درلوده.

په ۷۴۹هـ یا ۱۳۴۹ ز کال کې په تونس او شاوخوا سیمو کې د طاعون ناروغي رامنځته شوه، چې زیات خلک یې ووژل.

## لومړی درباري دنده

د ابن خلدون مور او پلار او نور زیات خپلوان یې ددې ناروغۍ په وجه مړه شول.

په دې وخت کې د ابن خلدون عمر شل کاله وه او د عملي ژوند پیل یې شوی وه، هغه د تونسي امیرانو نه ډیرې اجازت نامې ترلاسه کړې وې، چې کومه دنده ترلاسه کړي؛ ځکه، د هغه کورنۍ د په مختلفو دربارونو کې په لوړو چوکیو کې دندې اجراء کړې وې او کوښښ یې کاوه، چې د ځان لپاره کومه ښه وظیفه ترلاسه کړي.

د مور، پلار او د نورو خپلوانو د مرګ په وجه د یو څه وخت لپاره غمجن وه.

د وبا په ورځو کې د هغه زیاتره خپلوان او دوستان د تونس نه موریتانیا ته ولاړل؛ خو، ابن خلدون د خپل ورور په مشوره په تونس کې پاتې شو.

د وبا د تیریدو نه وروسته د تونس امیر ابومحمد ابن خلدون وروغوښت او د سلطان ابن اسحاق منشي يې مقرر کړ، په دې وخت د ابن خلدون عمر د شلو کلو شاوخوا وه.

ابن خلدون څو کاله دا دنده تر سره کړه؛ خو، د خپلې کورنۍ د شان او شوکت غوندې د لوړې دندې د ترلاسه کولو امید يې درلوده، سلطان ابن اسحاق د يوې جګړې لپاره تونس پریښود، مراکش ته ولاړ او ابن خلدون هم ورسره وه؛ خو، مراکش ته په رسیدو سره ابن خلدون د سلطان نه جلا شو او فاس سیمې ته ولاړ، ابن خلدون په خپله وايي، چې هغه دا ځانګړی سفر د علم د لاسته راوړلو لپاره وکړ؛ ځکه، کله چې سلطان په مراکش باندې حمله وکړه؛ نو، ستر ستر علماوو تونس پریښود او فاس ته مهاجر شول، هلته يو علمي چاپيريال جوړ شوی وه او هلته د تکړه علماوو نه د زده کړې لپاره ښه چانس وه، د ابن خلدون د سوانحو لیکونکی ډاکټر طاحا حسین يو نیوکه کوي او وايي، کله، چې ابن خلدون د تونس کمزوری حکومت او د مراکش د سلطان قوت ولیده؛ نو هغه تونس پریښود او د فاس خوا ته د تلو نیت يې وکړ او کله، چې سلطان ابواسحاق حمله وکړه؛ نو د مراکش نه ولاړ.

د څو ورځو د ګرځیدو نه وروسته هغه د سلطان ابوعنان په خدمت کې حاضر شو، سلطان ابو عنان هغه د خپلو علماوو په ډله کې داخل کړ، دې علماوو به سلطان ته د نحوې دعلم او دنیاوې کارونو په اړه مشوره ورکوله، کله به سلطان ددې علماوو تر منځ بحث هم تر سره کاوه.

څه وخت وروسته سلطان ابن خلدون خپل معتمد شخص مقرر کړ؛ خو، ابن خلدون دا دنده د زړه له کومې ونه منله او زړه نا زړه وه، هغه د لوړ وزرات فکر درلوده؛ ځکه، د هغه مشرانو تل لوړې دندې اجراء کړې وې، د فاس طرف ته د هغه د تلو موخه هم د لوړې دندې تر لاسه کول وه.

ابن خلدون ډیر مايوسه شو، بلکه فکر يې کاوه، چې دی ناکام شوی دی. په دې وخت کې د بجايه د سیمې واکمن اميرمحمد مهدي په فاس کې بندي وه، ابن خلدون د لیکونو په واسطه د هغه سره اړیکه جوړه کړه، ابن خلدون غوښتل، چې د اميرمحمد سره يو ځای شي او د سلطان ابوعنان پر ضد پاڅون وکړي، ابن

خلدون د امیرمهدي سره د مرستې ژمنه کړې وه، که چیرې د بریا وروسته امیرمحمد مهدي واکمن شي؛ نو، ابن خلدون به د هغه وزیر وي.

د دواړو دا ژمنه رسوا شوه او ابن خلدون یې زندان ته ولیږه او دريې کاله یې په زندان کې تیر کړل.

په ۷۵۹ هـ کال کې ابوعنان ومړ او حسن بن عمر واکمن (سلطان) شو، هغه ابن خلدون د زندان نه خوشې کړ او ابن خلدون ته یې ډیر زیات مال او دولت هم ورکړ.

ابن خلدون د سلطان احسان هیر کړ او د حسن بن منصور سلیمان سره، چې د سلطان حسن بن عمر قوي دښمن وه، د هغه سره یې اړیکې ټینګې کړې او د هغه دربار ته ولاړ.

کله، چې منصور بن سلیمان فاس ونیوه؛ نو، ابن خلدون په فوځ کې ورسره وه او د محسن حسن بن عمر په ماتولو کې مصروف وه.

ددې وروسته یې د یو مراکشي امیر په ملاتړ د منصور بن سلیمان پر ضد پاڅون ته ملا وتړله؛ خو، د مراکشي امیر هڅه ناکامه شوه او منصور بن سلیمان وتوانید، چې مراکشي امیر اندلس ته وشړي.

خو، ابن خلدون د خپلې هوښیارۍ په واسطه ځان وساته او د سلطان د خزانې معتمد مقرر شو، درباریانو دا کار خوښ نه کړ او سلطان ته یې د ابن خلدون د پخوانیو کارونو په اړه ثبوتونه وړاندې کړل.

ابن خلدون پوه شو، چې سلطان به په هغه رحم ونکړي، کله، چې سلطان د بجایه حکومت ترلاسه کړ؛ نو، ابن خلدون د هغه په دربار کې زیات اغیز پیداکړ.

کله، چې ابن خلدون پوه شو، چې په فاس کې نور نه شي پاتې کیدای؛ نو، ویره ورسره پیدا شوه، چې کیدای شي پای به یې بد وي.

## اندلس ته تګ

ابن خلدون غوښتل، چې خپلې سيمې ته ولاړ شي، هغه قلمسان ته د تلو نيت درلوده، تر څو د مراکش په تخت باندې عمر واکمن کړي، څرنګه، چې عمر په هغه باندې بدګمانه شوی وه؛ نو اجازه يې ورکړه، چې کولای شي، هر چيرې ولاړ شي.

په ۷۶۴ هـ کال کې د بيړۍ په واسطه اندلس ته ورسيد، کله، چې ابن خلدون د فاس په دربار کې وه؛ نو، هغه د غرناطې د سلطان او د هغه د وزير لسان الدين خطيب لپاره ځينې کارونه سرته رسول؛ ځکه، نو هغوی د ابن خلدون ډير ګرم هرکلی وکړ.

کله، چې په ابن خلدون باندې د سلطان باور ډير شو؛ نو، هغه يې د قشتالې د پاچا دربار ته وليږه او په اشبيليه کې يې سفير مقرر کړ.

کله، چې ابن خلدون قشتالې ته ورسيد؛ نو، په وياړ سره يې هغه ښار وليده؛ ځکه، يو وخت د هغه د نيکونو حکومت په دې ښار کې خپل اوج ته رسيدلی وه.

پاچا هغه ته هرکلی ووايه او په دې ښار کې يې د اوسيدو اجازه ورکړه، پاچا دا ژمنه هم ورسره وکړه، چې د نيکونو ترکه به ورسپاري؛ خو، ابن خلدون د هغه مننه وکړه او د منلو څخه يې انکار وکړ.

د ابن خلدون دا سفارت ډير کامياب وه، کله، چې بيرته غرناطې ته راغی؛ نو، پاچا زيات انعامونه ورکړل او څه ځمکه يې هم ورکړه، ابن خلدون خپله کورنۍ هم راوغوښته او ددې وروسته د شاهي دربار پورې وتړل شو.

د دربار سره د تړل کيدو وروسته، هغه د پاچا په مدحه او صفت کې څو قصيدې هم ولوستلې.

د ابن خلدون د عزت، احترام او په دربار کې د اغيز په ليدو سره د هغه پخواني ملګري ابن خطيب د هغه سره دښمني پيل کړه، ددې وروسته ابن خطيب د هغه پر ضد سازشونه پيل کړل.

په دې وخت کې د بجايه د واکمن لخوا ابن خلدون ته يو ليک راالېږل شوی وه، په ليک کې ليکل شوي وه، چې واکمن بيرته د بجايه واکمن شوی او تخت يې لاسته روا ړی دی او ابن خلدون بايد بيرته هلته ورشي.

ابن خلدون د پاچا نه اجازه وغوښته او په ۷۶۶ هـ کال کې د غرناطې نه د افريقا په لور روان شو.

په بجايه کې هغه ته د حاجب دنده ورکړل شوه، د درباري کارونو سربيره تعليمي کارونه هم ور په غاړه وه.

د بجايې د واکمن د خپل ورور سره، چې د قسطنطنيي واکمن وه، د دواړو تر منځ جګړه وشوه، په دې جګړه کې پاچا مړ شو.

ښار د قسطنطيني سلطان ونيوه، نوي واکمن ابن خلدون نه خوښاوه؛ ځکه، نو ابن خلدون د بسکرې لوري ته ولاړ.

په بسکره کې د اوسيدو پر وخت يې، د تلمسان د پاچا او د تونس د سلطان سره د ليک له لارې اړيکه ونيوله او دواړه يې تشويقول، چې د قسطنطينې د پاچا پر ضد جګړه وکړي.

ابن خلدون تلمسان ته د دندې د لاسته راوړلو لپاره راغلی وه؛ خو، کله ، چې سلطان په مراکش باندې حمله وکړه؛ نو، ابن خلدون د تلمسان د سلطان پر ضد بغاوت وکړ، ابن خلدون بريالی نه شو او فاس ته ولاړ، هلته يې د خپلې پخوانی دندې د تر لاسه کولو لپاره کوښښ وکړ؛ خو، به بشپړ ډول ناکام شو.

په ۷۷۶ هـ کال کې يې مراکش پريښود او بيا اندلس ته ولاړ، کله، چې غرناطې ته ورسيد، واکمن ورته هيڅ توجه ونکړه؛ ځکه، چې سلطان ترې ډير خفه وه، وجه يې دا وه، چې سلطان خپل وزير د سازش په تور افريقا ته تبعيد کړی وه، هغه وزير په فاس کې اوسيده او ابن خلدون د هغه پوره ملاتړ کړی وه، سربيره پر دې د فاس واکمن د غرناطې سلطان د ابن خلدون د سياسي چلونو نه خبر کړی وه.

ابن خلدون د هغه ځآیه ژر تلمسان ته ولاړ او د خپل یو ملګري په واسطه د تلمسان د دربار سره په اړیکه کې شو، په داسې حال کې، چې د همدغه سلطان پر ضد یې پاڅون کړی وه.

د تلمسان سلطان هغه ته کومه خاصه وظیفه ورنکړه، په دې وخت به ابن خلدون ډیری وخت ارام او استراحت کاوه.

څه وخت وروسته سلطان هغه یوې کوچی قبیلې ته د یو مهم کار لپاره ولیږه، ابن خلدون زړه نا زړه وه؛ خو، د سلطان د امر انکار یې نه شو کولای؛ نو، ځکه روان شو.

کله، چې د ښار نه ووته، خپله لاره یې بدله کړه او د کوچی قبیلې پر ځان د عریف کورنۍ ته ورغی، هلته یې د ښښنې یو لیک ولیکه او سلطان ته یې ولیږه، دا کار په ۷۷۶ هـ کال کې شوی دی.

ددې ځایه هغه د سلام کلا ته ولاړ او خپله کورنۍ یې هم هلته ور وبلله، د کلا په محل کې یې اوسیدنه پیل کړه.

ابن خلدون په کلا کې څلور کاله تېر کړل، په دې دوران کې یې تدریس او مطالعه هم کوله، هغه خپله وایې، چې خپل کتاب (مقدمه) یې په دې ځای کې لیکلی دی.

د اندلس او افریقا واکمن د ابن خلدون د خطرناک شخصیت په اړه پوه شوي وه؛ ځکه، نو د هغه لپاره په دربار کې کومه مهمه وظیفه تر لاسه کول نا ممکن وه.

ابن خلدون وایې، چې په دې ورځو کې هغه د کتابونو په لیکلو مصروف وه.

د سلام کلا کې د څلورو کلونو د تیریدو وروسته یو ځل بیا تونس ته ولاړ، هغه وایې، چې سلطان د هغه عزت او احترام وکړ او په څو ځایونو کې یې مشورې هم ورکړې؛ خو، ابن خلدون په عملي سیاست کې کومه برخه وانه خیسته.

کیدای، چې ابن خلدون خپله ځان د سیاست نه لیرې کړای وي.

په دې ورځو کې ابن خلدون په غټو غټو مسجدونو کې په تدريس باندې مصروف وه او خپل زيات وخت يې په تاريخ ليکلو باندې تيروه.

په دې علمي ډګر کې هم د ابن خلدون حريفان پيدا شو، څرنګه چې د هغه علمي شخصيت ډير مشهور شوی وه؛ نو د تونس مفتي محمد بن عرفه، چې د يو وخت پورې د هغه ملګری هم وه، د ابن خلدون پر ضد يې د کينې ډکې ويناوې پيل کړې، ويل به يې، چې هغه ډير خطرناک شخص دی او په ابن خلدون باندې يې څو نور تورونه هم ولګول، په دې وجه د ابن خلدون شاګردان په خپل استاذ باندې بدګمانه شول او د ابن خلدون تدريس يې پريښود، مفتي محمد بن عرفه غوښتل، چې هغه د هيواد نه وشړي؛ خو، سلطان د هغه خبره ونه منله.

## د ختيځ په لور

ددې پيښې وروسته سطان هغه د يوې مهمې جګړې لپاره د ځان سره بوت، ابن خلدو پوه شوی وه، چې نور دلته د هغه اوسيدل ناممکن دي او خطرناک دي.

د حج د فريضې د اداء کولو پريکړه يې وکړه او په ۷۸۴ هـ کال کې د ختيځ په لور روان شو، د څلويښتو ورځو بحري سفر نه وروسته سکندريې ته ورسيد، په دې وخت کې د سکندريې حکومت د ملک ظاهر (برقوق) په لاس کې وه.

په سکندريه کې يې يوه مياشت تيره کړه، هلته د اوسيدو په وخت يې د حج اراده پريښوده او د مکې پر ځای قاهرې ته روان شو، په قاهره کې هغه ډير مشهور شوی وه، هغه غوښتل، چې خپل قسمت دلته هم وازمويې.

کله، چې قاهرې ته ورسيد، د ازهر پوهنتون زياتره طالبانو د هغه نه د تدريس هيله وکړه؛ ځکه، نو هغه په ازهر پوهنتون کې په تدريس پيل وکړ.

په قاهره کې د پاچا دربار ته ولاړ، پاچا هغه د خپلو علماوو په ګروپ کې داخل کړ.

څه وخت وروسته د صلاح الدين ايوبي لخوا جوړې شوې مدرسې صليه کې د استاذ په حيث مقرر شو.

ابن خلدون، چې کله د سکندريې نه قاهرې ته ننوت؛ نو، هغه یوه نوې نړۍ وليده، هغه د ښار د ښکلا او جلال په ليدو سره حيران شو، هغه قاهرې ته د اسلام د حکومت د مرکز نوم ورکړ.

په دې وخت کې په مصر کې ډير ارام حکومت وه، هيڅ زور زياتی نه وه او نه په دربار کې درباري جګړې او سازشونه وه، د مصر حکومت ډير حاکم وه او په همدې وجه مصريانو قانون پلی کاوه.

## په مصر کې قاضي مقرريدل

کله، چې پاچا د ابن خلدون لياقت، ذهانت او علمي تکړه توب وليده؛ نو، هغه يې په کال ۷۸۶ هـ کې د مالکي مذهب قاضي وټاکه.

ددې په اړه ابن خلدون وايي، چې هغه د قاضی القضات دنده یوازې د پاچا د خوشاله کولو لپاره ومنله، کنه هغه ددې دندې اميد نه درلوده.

په مصر کې د څلورو واړو مسلکونو قاضيان موجود وه؛ خو، قاضي يوازينی شخص وه، چې د ټولو مذهبونو په اړه يې پريکړې کولې او کولای يې شول، چې هر ډول فوځي او مذهبي مسئلې حل کړي.

د قاضي القضات د مقرريدو لپاره د کوم ځانګړي مسلک درلودل مهم نه وه، بلکه هغه د هر مذهب شخص کولای شول، چې دا دنده تر سره کړي، د قاضي القضات صلاحيت ډير زيات وه او د ټولو مسلکونو په اړه يې پريکړې کولای شوې، قاضي به اجتهاد هم کاوه، په مصر کې د شافعي مسلک قاضيان زيات وه.

## د قاضي له دندې لرې کول

ځايي علماوو او فقهاوو د قاضي القضات د دندې د لاسته راوړلو لپاره زيات کوښښونه کول، دا دنده د مصريانو نه بغير نورو ته ورکول، د ځايي قاضيانو هيڅ نه خوښيده او ټول مصري قاضيان د ابن خلدون پر ضد شول، کله چې ابن خلدون د بين القصر په الصاليحياه مدرسه کې د قاضي په چوکی باندې کيناست؛ نو، د څلورو خواوو نه يې پر ضد سازشونه پيل شول، ابن خلدون ددې په اړه

لیکي، چې په دې وخت د مصر دربار د هر ډول بې نظمیو ښکار شوی وه، زیاتره قاضیان، مفتیان او شاهدان پست خلک وه، انصاف هیڅ موجود نه وه.

ددې حالاتو سره د مقابلې کوښښ یې کاوه، هغه هر ډول بې نظمۍ پای ته ورسولې، انصاف یې رامنځته کړ، عدالتي نظام یې د کمزورۍ نه وساته، هغه وایې، ما ددغې دندې د لاسته راوړلو وروسته د الله تعالی د قوانینو د پلي کولو کوښښ پیل کړ او په دې لاره کې مې هر ډول ستونزې له مخې لیرې کړې، ما هر چا ته انصاف ورکول اسانه کړل، اکثره وخت به د لوړو چوکیو او منصب خلکو غوښتل، چې پریکړې د هغوی په خوښه وشي؛ خو، ما به په هر وخت کې درستې پریکړې کولې، ما د شاهدانو بیانونه په پوره ډول څېړل او وروسته به مې پریکړه کوله، په دې طریقه به کمزرو خلکو انصاف رسیده، زیاتره ښوونکو، امامانو او شهزاه ګانو به هم کوښښ کاوه، دوی به د خپلو کړنو لپاره دروغجن شاهدان راوستل او خپل جرمونه به یې پټول، ما په ډیرو ځایونو کې د هغوی دغه کارونه بې سرپوښه کړل او هغوی ته مې سزاګانې ورکړې. ددې حالاتو نه مالومیږي، چې د ابن خلدون دښمنان زیات شوي وه، دغه خلکو د ابن خلدون پر ضد په دربار کې هم سازشونه پیل کړي وه.

ابن خلدون چې د ځان په اړه کومې خبرې وکړې، د هغه څخه یې صداقت او ایمانداري مالومیږي، د هغه هم عصره لیکوالو هم د هغه ددې کړنو تصدیق کړی دی، د بیلګې په ډول ابوالحاسن لیکلي دي، چې: هغه په اصولو او ضوابطو باندې ډیر مجتهدانه نظر کاوه، عدالتي نظام به یې په ډیر لیاقت سره چلاوه، د لویو خلکو واسطې به یې په نظر کې نه نیولې.

السخاوي د ابن حجر نه نقلوي:

ابن خلدون به د خلکو سره ډیره ښه رویه کوله، هغه به دروغجنو شاهدانو ته سختې سزاګانې ورکولې، کله، به چې د چا نه خفه شو؛ نو چغه به یې کړه او د خپل ځای نه به پاڅیده، ویل به یې، دا په زندان کې واچوئ.

د څو میاشتو د تیریدو وروسته یې پر ضد د سازشونو طوفان پیل شو، هغه وایې، چې هغه د شاهي سرپرستی نه محروم شو، سربیره پر دې یو بل غم هم ور

زيات شو، هغه يې د ښځې، ماشومانو او جائداد د لاسه ورکول وه، مصر ته په راتګ سره هغه غوښتل، چې ښځه او ماشومان دې هم دلته راشي؛ خو د تونس سلطان چې د ابن خلدون په مصر ته تګ باندې خوښ نه وه، هغوی ته يې د تلو اجازه نه ورکوله، سلطان غوښتل، چې ابن خلدون بايد بيرته تونس ته راشي، د مصر د سلطان په غوښته يې د ابن خلدون ماشومانو ته د تلو اجازه ورکړه، ابن خلدون دغه د غم ډکه پيښه داسې بيانوي: زه د قاضي القضات د چوکی نه محروم شوم، سربيره پر دې د غم يوه بله پيښه هم رامنځته شوه، هغه د خپلو ماشومانو د جدايی غم وه، هغوی چې په کوم بحري بيړۍ کې مصر ته راتلل، هغه په لاره کې د يو سخت طوفان په وجه له منځه ولاړه او ډوبه شوه، ما خپل ماشومان او جائداد ټول د لاسه ورکړل، دې کار زما ملا راماته کړه، ما د دندې څخه د استعفا پريکړه وکړه.

ددې پيښې وروسته تاريخپوه د قاضي القضات د دندې هم ګوښه کړای شو، هغه وايي، چې تاسو داسې فکر مه کوئ، چې زه د خپلې دندې نه ليرې کړای شوی يم، بلکه ما په خپله خوښه دنده پرې ايښې ده، هغه وايي، سلطان زما سره په ديره ښه توګه چلند کاوه، هغه زما په غم باندې ښه پوهيده، هغ پوهيده، چې زه به په دې وخت خپله دنده په ښه طريقه سره سرته ونه شم رسولای، هغه زما د استعفی غوښتنه ومنله، عامو او خاصو خلکو زما په حالت باندې ډير افسوس وکړ او ما سره يې همدردي وکړه، زما څخه غوښتنه وشوه، چې ژر بايد راشم او خپله دنده بيا پيل کړم. ابن خلدون موږ ته دا راښايي، چې د دندې څخه ليرې کيدل د هغه پر ضد د سازشونو او دښمنيو پايله وه، ابن خلدون د خپلې دندې نه په لومړي ځل په ۷۸۷ هـ د جمادي الاول په مياشت کې، چې د ۱۳۸۵ هـ کال د جولايي سره سمون خوري ليرې کړای شو، يانې اووه مياشتې يې دغه دنده تر سره کړه، ددې وروسته هغه خپل وخت په ليکلو او زده کړه باندې تېر کړ.

هغه په ممتحياه دارلعلوم کې تدريس کاوه، وروسته کله، چې سلطان په بين القصر سيمه کې يوه نوې مدرسه (ظاهريه برقوق دارالعلوم) په نوم تاسيس کړه؛ نو ، ابن خلدون هلته د مالکي فقهې د استاذ په حيث مقرر شو، هلته يې لومړنی خطبه ډير شانداره وه، هلته عوام او امرين ډير زيات موجود وه، په دې خطبه کې ابن خلدون خپل فصاحت او بلاغت وښود، د سلطان مدحه او صفت يې وکړ او د

هغه لپاره يې د خير دعا وکړه، هغه په دغو دواړو مدرسو کې درس ورکاوه، تر ځو، چې په ۷۸۹ هـ کال کې د حج میاشت راورسیده او د حج د تلو نيت يې وکړ، سلطان هغه ته اجازت ورکړ د شعبان په نيمايي کې يې قاهره پريښوده او د سمندر په لاره حجاز ته ورسيده، د حج د فريضې د اداء کولو نه وروسته د سمندر له لارې کوسير ته ورسيد، د هغه ځايه د نيل په لاره بيرته قاهرې ته راغى، هلته په رسيدو سره يې د سلطان سره وکتل او ورته يې وويل، چې په کعبه شريفه کې يې سلطان ته زياتې دعا ګانې وکړې، سلطان ترې دير خوشاله شو او هغه يې په سلطانيه دارالعلوم کې د استاذ په ځاى د مهتمم په دنده وګماره، هغه د ۷۹۱ هـ کال د محرم د مياشت پورې دا دنده اجراء کړه، د لومړي درس په دوران کې د معمول مطابق ډير زيات عام او خاص خلک راټول شوي وه، هغه اعلان وکړ، چې د امام مالک کتاب موطا به د نصابي کتاب په شکل تدريس کيږي، هغه په خپله وايي، چې د امام مالک د ژوند حالات، د هغه کارونه، نظريات او اعتقاداتو باندې يې رڼا واچوله، په پاى هغه خپله خبره په ډير وياړ سره داسې پاى ته رسوي: زما خطبې خلک حيران کړل، د هغوى په نظرونو کې زما لپاره ډير احترام او عزت ښکاريده، زما خطبې د هغوى په ذهنونو کې جادو وکړ، عام او خاص ټول په دې پوه شول، چې زه په يقيني ډول د خپلې دندې حقدار وم.

## ادبي بوختياوې

څه وخت وروسته ابن خلدون په خپلو څيړنو او تحقيق باندې بوخت شو، هغه د خپلو سوانحو ليکل وځنډول، د ۷۹۷ هـ کال د پيل نه وروسته يې د تاريخ اړوند ليکل پيل کړل، د ۸۰۷ هـ کال پورې يې د خپل ژوند ټول حالات او کتابونه وليکل، يانې د مرګ نه څو مياشتې مخکې يې بشپړ کړل، موږ به دلته د هغه د چاپ شوي کتاب پر ځاى د هغه د اصلي کتابونو نه استفاده وکړو؛ ځکه، اصلي کتاب يې نسبت چاپ شويو کتابونو ته ډير مستند دى.

په دې دوران کې د هغه په ژوند کې کومه مهمه واقعه نه دى پيښه شوې، هغه د قاهرې د سلطان او د شمالي افريقا د سلطانانو تر منځ د اړيکو په ښه کولو باندې بوخت وه، هغه د شمالي افريقا د واکمنو، الناصر قلون او بنو مارين د

پاچاهانو تر منځ د لیکونو د استولو او ډالیو د لیږلو ذکر کوي، هغه د هسپانوي او مصري واکمنو تر منځ د دوستانه اړیکو ذکر هم کړی دی، د تونس شاه د مصر سلطان ته د سمندر له لارې د خرو لوړ نسل لرونکي خره ور لیږلي وه؛ خو، په کومه بحري بیړۍ کې، چې دا خره لیږل کیدل، هغه د طوفان په وجه له منځه ولاړه، په دې بیړۍ کې د ابن خلدون خپل ماشومان وه، د مصر سلطان د تونس شاه ته د افسوس پیغام استولی وه او هغه ته یې ډیرې زیاتې ډالۍ ور ولیږلې، په ۷۹۹ هـ کال کې هغه یوه ډله تونس ته د خرو د اخیستلو لپاره ولیږله، کله، چې دا ډله مصر ته راغلل؛ نو ، د تونس او شمالي افریقا د امیرانو لخوا ورته ډیرې زیاتې ډالۍ ورکول شوې وې، هغه لیکي، کله، چې عامو خلکو ته دا ډالۍ د نمایش په ډول واړندې شوې؛ نو، ما ځان ډیر محترم او معزز حس کړ، ددې واکمنو تر منځ دوستي او ملګرتیا زما په وجه رامنځته شوې وه.

## د بیت المقدس سفر

ابن خلدون تقریبا څوارلس کاله د قاضي القضات له دندې ګوښه وه، هغه په خپله وایي، زما پر ضد د دښمنانو او کینه ګرو سازشونه روان وه، دغو خلکو سلطان زما پر ضد بدګمانه کاوه، دغه خلک د یوې ډلې په شکل منظم وه او هغوی غوښتل، چې ماته باید بیرته د قاضي القضات دنده ونه سپارل شي؛ خو، کله چې دغه خلک له منځه ولاړل او سلطان هغوی بل هیواد ته تبعید کړل؛ نو، سلطان په لومړي فرصت کې هغه ته خپله پخوانی دنده ور وسپارله. په دې وخت د مالکي مسلک قاضي نصیرالدین التانسي وفات شوی وه(د روژې په منځنیو کې کال ۸۰۱ هـ)، ابن خلدون دغه مهال په خپل پټي کې، چې د محیاه مدرسې لخوا ورکول شوی وه، په غنمو ریبلو بوخت وه، سلطان هغه ځان ته راوغوښت او په دویم ځل یې د قاضي القضات په چوکۍ وګماره. څو میاشتې وروسته د شوال په میاشت کې سلطان وفات شو، زوی یې الناصر فرج د هغه پر ځای واکمن شو، د حکومت حالات خراب وه او ځآی ځای بغاوتونه هم لیدل کیدل، کله، چې حالات ښه شول؛ نو، ستر مؤرخ د سلطان د بیت المقدس د تلو اجازه وغوښته او سلطان هم هغه د تلو اجازه ورکړه، ابن خلدون هلته لرغونو ودانیو او خرابو شویو ځایونو ته ولاړ او هم د اقصی د مسجد، الخلیل د مقبرې او نورو زیارتونو سیاحت وکړ، بیت اللحم ته هم ولاړ؛ خو، هلته موجودې کلیسا ته د ورننوتو څخه

يې انکار وکړ، د هغې په هکله خپله داسې وايي، د عيسايانو عقيده ده، چې دوی هلته حضرت عيسی عليه السلام صليب کړی دی؛ ځکه، نو عيسايانو هلته ښکلې کليسا ودانه کړې ده، زه ددې نه انکار کوم؛ ځکه، کليسا ته ننوځم. ددې وروسته هغه بيرته راغی او د سلطان په هغه جلوس کې يې برخه واخيسته، کوم چې د شام نه بيرته قاهرې ته را روان وه، دا پيښه د ۸۰۲ هـ کال د روژې په پای کې شوې ده.

د ۸۰۳ هـ کال په محرم کې د دويم ځل لپاره د قاضي القضات له دندې نه ګوښه کړای شو، موږ ته دا کار د هغه د دښمنانو ښکاري، د ډېر وخت راهيسې، چې د هغه او دښمنانو تر منځ يې کوم حالات وه، دده له دندې په ګوښه کيدو باندې پای ته ورسيدل.

کله، چې قاهرې ته د امير تيمور دا خبر ورسيده، چې هغه پر شام حمله کړې او ډيره وينه يې تويه کړې؛ نو، د مصر په دربار کې حالات ترينګلي شول، سلطان الناصر فرج د خپل فوځ سره د تاتاري فوځ پر ضد جګړې ته ووت، د هغه سره د فوځ سربيره زيات علماء او فقها هم مل وه، د هغه سره څلور قاضيان هم وه، چې يو په کې ابن خلدون وه، ابن خلدون د شمالي افريقا تجربو ته په کتو سره، دې سفر ته خوشاله نه وه، هغه په خپله وايي، چې سلطان ته يې ډير حيلې او بهانې وکړې، چې ددې تګ نه پاتې شو؛ خو، بريالی نه شو او سلطان ځانګړي حاجب يشبک هغه ته ډير عذر وکړ او زياتې تحفې يې ورکړې، هغه يې په دې تګ باندې راضي کړ، ابن خلدون دغه پيښې ليکلي دي او پيل يې د تاتاريانو او سلجوقيانو د عروج او زوال څخه کړی دی، دغه کاروان د ۸۰۳ هـ کال په ربيع الاول کې له قاهرې څخه روان شو او د جمادی الاول په لومړی اونۍ کې دمشق ته ورسيد، ابن خلدون او نور علماء په عدليه مدرسه کې اوسيدل؛ خو، مصري فوځ د دمشق په شاوخوا سيمو کې د تاتاريانو سره جګړې ته ولاړ.

## د امير تيمور سره ليدل

کله، چې مصر ته دا خبر ورسيد، چې امير تيمور کوچنی اسيا نيولې او سيواس يې محاصره کړی او د شام خوا ته روان شوی دی؛ نو، سلطان خپل فوځ راټول کړ او اعلان يې وکړ، چې فوځ به يې شام ته ځي.

ابن خلدون وايي: په دې وخت کې ما کومه دنده نه درلوده؛ خو، د سلطان سکرتر ټينګار وکړ، چې بايد د سلطان سره يو ځای لاړ شم، کله، چې ما د هغه غوښتنه ونه منله، هغه په ډير اکرام او احترام سره بيا رانه غوښتنه وکړه او څه ډالۍ يې هم راکړې، په دې زه ورسره روان شوم.

زه په دويم سبا د ميلادالنبي عليه السلام په منځ کې ورسره روان شوم، کله، چې غزې ته ورسيدو؛ نو، څو ورځې مو ارام وکړ او د نويو خبرونو انتظار مو ويست، وروسته  د دمشق په لور روان شو، تر څو د تاتاريانو د راتګ نه مخکې هلته ورسيږو، د هغه ځايه په لار کې شقحب کې کوز شو او سبا سهار دمشق ته ورسيدو، په دې وخت د امير تيمور فوځ د بعلبک نه د دمشق په لور روان شوی وه.

سلطان خپله او نورې خيمې په قبه يلبغا کې ودرولې، کله، چې امير په ښار باندې په يو ځل حملې کولو نه مايوسه شو؛ نو، هغه يوه نږدې غره سره يوه مياشت تيره کړه، په دې ډول داوړه فوځونو د يو بل حرکات او سکنات په ښکاره ډول ليدلای شول، په دې دوران کې د دواړو فوځونو تر منځ درې، څلور وارې کوچنی جګړې هم وشوې، کله، به يو لښکر بريالی کيده او کله به بل بريالی کيده.

په دې وخت ځينو اميرانو ته دا خبر ورسيده، چې ځينې هغه اميران چې مصر ته تللي، هغوی هلته خلک بغاوت ته هڅوي؛ نو سلطان پريکړه وکړه، چې بايد مصر ته ولاړ شي؛ ځکه، کيدا شي، چې د هغه په نه موجوديت کې خلک حکومت چپه کړي.

هغه د جمادی الاول په ۲۱ تاريخ د شپې روان شو، د صاليحه غرونو ته ورسيده او د هغه ځايه د سمندر له لارې غزې ته ورسيد.

او بيا د شقحب له لارې مصر ته ورسيده.

په دويم سهار د دمشق خلک حيران وه؛ ځکه هغوی ته درست خبرونه نه وه رسيدلي، ددې وروسته قاضيان او فقها ماسره د ليدو لپاره د عادليه مدرسې ته راغلل او دا پريکړه مو وکړه، چې د امير تيمور نه بايد د خپل اهل و عيال لپاره امان وغوښتل شي؛ خو، کله مو چې د کلا د نائب سره وليدل، هغه دا کار خوښ

نکړ او نیوکه یې وکړه؛ خو هغوی د نائب خبره ونه منله او قاضي برهان الدين او ابن مفلح الخبلی د صوفیانو د شیخ سره د امیر تیمور د لیدو لپاره روان شوه، هغه د امن ورکولو ژمنه ورکړه او بیرته یې را ولیږل، چې هغوی باید د ښار مشران او نور قاضیان ورته را ولیږي.

قاضیان او نور مشران خلک بیا د امیر تیمور لیدو ته ولاړل، امیر تیمور تحفې او ډالۍ ګانې ومنلې او د امن ورکولو لیکونه یې ولیکل او هغوی یې رخصت کړل، هغه ژمنه وکړه، چې دویمه ورځ به د ښار دروازې خلاصوي او خلک به خپل کاروبار ته پریږدي او دا یې هم وویل، چې امیر تیمور به ښار ته ننوځي، حکومت به جوړوي او په خلکو به حکومت کوي، قاضي برهان الدين ماته خبر راکړ، چې امیر زما نوم اخیستی دی او دا یې هم ویلي دي، چې زه فوځ سره مصر ته تللی یم، که تر اوسه دلته یم، برهان الدين ورته په ځواب کې ویلي وه، چې هغه تر اوسه دلته په مدرسه کې دی او هغه د پخوا څخه دلته اوسیده، موږ دغه شپه هغه ته د ورتګ لپاره چمتوالی نیوه.

د جامع جومات په انګړ کې د ځینو کسانو تر منځ جګړه شوه، ځینو خلکو د امیر تیمور په خبرو باندې باور نه درلوده، زه د شپې ناوخته خبر شوم او وډار شوم، هڅې نه چې څوک مې ووژني، سهار هغو قاضیانو ته ورغلم، چې د ښار په دروازه کې راټول شوي وه، ما د هغوی نه د ښار نه و تلو اجازه وغوښته؛ خو، هغوی ونه منله، وروسته یې ماته د ښار نه د بیرون تګ اجازه راکړه.

د دروازې نه بهر مې د امیر ځینې خاص خادمان ولیدل او هغه شخص مې هم ولیده، چې د دمشق په حکومت یې ګمارلی وه، ددې شخص نوم شاه ملک وه، چې دا شخص د امیر د چغتایي د قبیلي څخه وه، ما هغه ته وویل، چې خدای تعالی دې تاته اوږد ژوند درکړي، بیا مې ورته وویل، چې زه ستا یرغمل یم، هغه راته کړه، چې موږ هم ستا یرغمل یو، شاه ملک ماته یوه سپرلۍ وړاندې کړه او د سلطان خاص خادم یې ماسره ولیږه، چې ما امیر ته ورسوي، کله، چې د امیر خیمې ته ورسیدو؛ نو، ځواب راغی، چې ما دې په هغه بله خیمه کې، چې د ملاقاتونو لپاره ده، هلته کینوي.

کله، چې زما د نوم خبر ورکړل شو؛ نو، زما د نوم سره یې د (مغربي مالکي قاضي) الفاظ زیات کړل، تیمور زه وغوښتلم او کله چې خیمې ته ورغلم؛ نو د خوراکونو قابونه یې له مخې تیریدل، دا قابونه هغو مغلو ته وړل کیدل، چې د دایرې په شکل د خیمې مخې ته ناست وه.

په داخلیدو سره مې سلام وکړ، هغه خپل سر اوچت کړ، خپل لاس یې ماته راکړ او ما یې لاس چپ کړ، بیا یې ماته د کیناستو اشاره وکړه، وروسته یې یو معتبر حنفي عالم عبدالجبار بن النعمان راوغوښت، هغه د خوارزم اوسیدونکی وه، هغه یې ددې لپاره راوغوښت، چې زموږ دواړو تر منځ د ژباړن دنده تر سره کړي او هغه ته یې هم د کیناستو حکم وکړ.

هغه زما نه پوښتنه وکړه، چې ته د مغرب د کومې سیمې نه راغلی یې او د څه لپاره راغلی یې، ما ورته وویل، زه د حج د فریضې د اداء کولو لپاره راوتی وم، زه د سمندر له لارې مصر ته راغلم.

تیمور زما نه پوښتنه وکړه، چې الظاهر (سلطان) ستا سره څنګه رویه وکړه، ورته کړه مې، هغه زما درجه ومنله، زما یې قدر او مهمان نوازي وکړه او د حج د سفر لپاره یې توښه هم راکړه، الله دې په هغه رحم وکړي، تیمور زما نه پوښتنه وکړه، هغه ته څنګه قاضي مقرر کړې، ورته کړه مې، د الظاهر د وفات نه یوه میاشت مخکې د مالکي مسلک قاضي وفات شو، هغه فکر کاوه، چې ددې لپاره زه (ابن خلدون) وړ شخص یم، هغه زه په دې دنده مقرر کړم؛ خو، یوه میاشت وروسته هغه ومړ، هغو خلکو چې زه یې نه خوښیدم، زما پر ځای یې بل قاضي مقرر کړ، الله دې هغوی ته جزاء ورکړي.

بیا یې زما نه پوښتنه وکړه، ته چیرته پیدا شوی یې، ورته کړه مې، په مغرب کې دننه، چیرته چې زه د ملک الاعظم سکرتر وم.

هغه وپوښتم، په مغرب کې د دننه څخه مطلب څه دی؟.

ورته کړه مې، د هغه ځای خلک دننه هغه ځای ته وایې، چې ډیر وروسته پاتې وي.

بيايې پوښتنه وکړه، فاس چيرته دی؟ ورته ومې ويل، دا د غرونو په منځ کې پروت ځای دی او بن مرين د حکومت مرکز دی.

ما ورته وويل، زه به ستا د لاس لاندې کار کوم. کله، چې د هغه څخه تلم؛ نو، هغه څه مې ورته وليکل، چې هغه يې غوښتنه کړې وه او هغو ليکلو ته يې کتابي بڼه ورکړه.

خپلو خادمانو ته يې اشاره وکړه، چې ده ته د خيمې څخه ډوډۍ راوړي، ډوډۍ يې د هغې خيمې څخه راوړه، چې د (رشته) په نوم ياديده او ددې خيمې خلک د ډوډۍ په تيارولو کې زيات ماهر وه، د خوراکونو څو ډوله قابونه يې راوړل او زما مخې ته يې کيښودل، زه ودريدم، هغه مې واخيستل، ومې خوړل او ومې څښل، دا کار امير تيمور ډير خوښ شو.

بيا کيناستو او ټول غلي وو، هغه کار چې د شافعي مسلک د قاضي القضات صدرالدين المناوي سره شوی وه، په ويره کې يې اچولی وم.

ما وويل، الله دې تا ته بری در په برخه کړي! د نن نه ديرش، څلويښت کاله پخوا زه ستا د ليدو ليواله وم، ژباړونکي عبدالجبار وويل، او ددې وجه څه وه؟.

ورته کړه مې: ددې دوه وجې دي، لومړی هغه يې داده، چې ته سلطان العالم او د نړۍ حاکم يې، زه يقيني يم، چې د ادم عليه السلام نه واخله، تر دې وخت پورې به ستا په شان کوم بل واکمن نه وي تير شوی، زه د هغو خلکو څخه نه يم، چې بې ثبوته خبرې کوي، زه د علم خاوند يم او دا خبره ثبوت ته رسولی شم، وروستني او مخکيني ټول پر دې خبره متفق دي، چې د نړۍ زيات خلک په دوه ګروپونو باندې ويشل شوي دي، عربان او ترکان، تاسو ښه پوهيږئ، چې عربان هغه وخت قوي شول، چې کله هغوی د خپل مذهب په پيروی کولو باندې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پر شاوخوا باندې راټول شوه او د ترکانو خبره داده، چې د ايران د واکمنو سره جګړې او د افراسياب لخوا د ايرانيانو او خراسان نيول، او د نړۍ ستر پاچاهان، هغه که کسری، قيصر، سکندر او يا هم بخت نصر وي، هغوی (ترکانو) ته نشي رسيدای، کسری د ايرانيانو پاچا وه؛

خو، ایرانیان له ترکانو سره کله جګړه کولای شي، بخت نصر د بابل او نبطیانو حاکم وه، د هغه او ترکانو جګړه؟.

دویمه وجه، چې زه یې د امیر تیمور د لیدو لیواله کړی وم، هغه داده، چې ستا په اړه ماته او ستا ټوله قیصه په مغرب کې ما اوریدلې ده.

هغه ماته وویل، تا د کسری، قیصر او سکندر تر څنګ د بخت نصر نوم هم واخیست، په داسې حال کې، چې بخت نصر هغوی ته نه شي رسیدای، هغوی ټول ستر پاچاهان وه.

هغه بیا زه وپوښتم، بخت نصر د کومو خلکو پورې تړلی وه؟ ورته کړه مې، د هغه په اړه په خلکو کې اختلاف موجود دی، ځینې وایې، چې د نبطیونو سره یې اړیکه درلوده، یانې د بابل د وروستیو پاچاهانو سره او ځینې وایې، چې هغه د لرغونو ایرانیانو څخه وه.

هغه وویل: ددې مطلب دا شو، چې هغه د منوجهر د اولادې څخه وه؟

ورته کړه مې، هو دا درسته ده او همداسې مشهوره هم ده. خپلو خبرو ته یې دوام ورکړ او ویې ویل: مور د خپلې مور له طرفه د منوشهر سره اړیکه لرو، ما ژباړونکي ته وویل، دا دویمه وجه وه، چې زما په زړه کې یې د امیر تیمور سره د لیدو لیوالتیا پیداکړې وه.

بیا امیر وویل: د بخت نصر په اړه په دې دوه نظرونو کې ستا لپاره کوم نظر قوي بریښي؟ ورته کړه مې، هماغه چې هغه د بابل د وروستیو پاچاهانو څخه وه (نبطیانو څخه)؛ خو، هغه دویم نظر ته ترجیح ورکړه، ورته ومې ویل، راځئ د طبري نظر وګورو، چې هغه څه وایې، هغه داسې مؤرخ دی، چې څوک د هغه په رایه باندې د بل چا رایې ته ترجیح نه ورکوي، هغه وویل، د طبري د قول منل خو واجب نه دي، ژباړونکی دې ایراني او عربي کتابونه راوړي او تا سره دې بحث وکړي، ورته کړه مې او زه به د طبري په رایه باندې بحث کوم، په دې سره بحث ختم شو او هغه چوپ شو.

هغه ته خبر ورکړل شو، چې د ښار دروازه خلاصه شوې ده او قاضیان د خپلې ژمنې د پوره کولو لپاره بیرون راوتي دي.

د تکلیف د لرلو سره، هغه زموږ له مخې نه اوچت شو او په اس باندې کینول شو، په زین باندې کیناست او څلورو خوا باجې وغږول شوې، هغه د دمشق په لور روان شو او تربت منجک سیمې ته نږدې کوز شو.

هلته، یې مجلس جوړ کړ، د ښار قاضي او مشران یې خدمت ته حاضر شول، زه (ابن خلدون) هم هلته حاضر شوم، وروسته یې هغوی رخصت کړل او خپل نائب شاه ملک ته یې امر وکړ، چې هغوی دولتي تقدیرنامې ورکړي؛ خو، ما ته یې د کیناستو اشاره وکړه او زه یې مخې ته کیناستم.

هغه امرین یې راوغوښتل، چې د تعمیرونو د جوړولو لپاره یې ګمارلي وه، هغوی انجینران راوستل او د کلا شاوخوا اوبو په اړه یې خبرې وکړې، چې ایا کولای شو، دغه اوبه بیرون وباسو، هغوی تر ډیر وخت پورې په دربار کې ناسته وه او بیا یې رخصت کړل.

ما ته یې هم رخصت راکړ او د ښار دننه خپل ځای ته راغلم، زه په خپل کور کې بند وم، څرنګه، چې هغه ما نه د مغرب د حالاتو غوښتنه کړې وه، ما یې په لیکلو باندې پیل وکړ، په څو ورځو کې مې دا کار پای ته ورساوه او کله، چې مې د هغه خدمت ته وړاندې کړل؛ نو، زما له لاسه یې واخیستل او خپل سکرتر ته یې امر وکړ، چې مغولي ژبې ته دې وژباړل شي.

له دې وروسته هغه په ډیر قوي شکل سره ښار کلابند کړ، د کلا مقابل لوري ته یې، منجنیقونه، د اور او کاڼو و وررولو ماشینونه او درز اچونکي توپونه ودرول، دا کار په څو دقیقو کې وشو، محاصره نوره هم تنګه شوه او د کلا دیوالونه درز شول، په کلا کې داسې خلک وه، چې د امیر خدمت یې کړی وه؛ نو، څینو ساتونکو د امیر نه د امان غوښتنه وکړه، امیر هغوی ته امان ورکړ او د امیر مخې ته راوستل شول، کلا یې له منځه یوړه او د کلا ټولې نښې یې له منځه یوړې.

په هغو ورځو کې، چې زه د سلطان سره اوسيدم، تيک په هماغه ورځ، چې هغه کومو خلکو امان ورکړی وه، د کلا نه يو شخص راووت، دا شخص د مصر د خليفه ګانو له اولادې څخه وه او الحاکم عباسي د کورنۍ څخه وه، هغه خپل ځان د امير مخې وړاندې کړ او ويې ويل، چې: زما په معامله کې ما سره انصاف وکړه او ما ته خپل خلافت وسپاره؛ ځکه، هغه زما د مشرانو ميراث دی.

سلطان تيمور ورته وويل: زه ستا لپاره قاضيان او فقها راغواړم او هغوی چې کومه پريکړه وکړه، هماغه به پلي کوم.

بيا تيمور قاضيان او فقها راوغوښتل، زه يې هم د هغوی سره ور وغوښتم، موږ هغه ته ورغلو، هغه شخص، چې د خلافت غوښتنه يې کوله، هغه هم حاضر شو، عبدالجبار وويل، دا د عدالت او انصاف ځای دی، هر څه چې وايې، هغه ووايه.

هغه شخص (الحاکم) وويل: دا خلافت زما او زما د مشرانو حق دی، هغه روايت بيخې درست دی، چې وايې، تر څو چې نړۍ وي، خلافت به د عباسيانو سره وي، زه د هغو خلکو په نسبت، چې نن په قاهره کې واکمن دي، د خلافت ښه حقدار يم؛ ځکه، چې دا زما او زما د مشرانو روا حق وه او دی او دغه شخص بغير د کوم قانوني سند نه تر لاسه کړی دی.

عبدالجبار زموږ هر يو نه غوښتنه وکړه، چې بحث وکړو، موږ د څه وخت لپاره چوپ وو، وروسته هغه زموږ څخه وپوښتل، تاسو ددې روايت په اړه څه وايی؟.

برهان الدين ابن مصلح ځواب ورکړ، دا روايت درست نه دی او بيا يې زما نظر وغوښت، څرنګه چې وويل شول، دا روايت درست نه دی.

سلطان تيمور وويل: ښه، نو بيا ولې تر اوسه پورې خلافت د عباسيانو په لاس کې وه؟ هغه دا خبره نيغه ماته وکړه او ما ورته وويل:

الله تعالی دې تاته برې درکړي، د پيغمبر عليه السلام د وفات نه وروسته د مسلمانانو تر منځ په دې اړه اختلاف موجود دی، چې ايا په مسلمانانو باندې

واجب دي او کنه، چې هغوی په دنیاوي او اخروي کارونو کې د ځان لپاره یو والي (مشر) وټاکي، د یوې ډلې نظر دادی، په دې ډله کې خوارج هم شامل دي، چې والي ټاکل واجب نه دي؛ خو، اکثریت وایي، چې ولایت واجب دی، ددې واجبیت سند څه دی؟، ټول شیعه د حدیثو په وصیت باندې ټینګار کوي، هغوی وایي، چې پیغمبر علیه السلام حضرت علي (ک) ته د خلافت وصیت کړی وه؛ خو، حضرت علي (ک) وروسته د شیعه ګانو تر منځ دومره اختلافات رامنځ ته شول، چې شمارل یې ناممکن دي. د اهل السنتو ټولو علماوو ددې وصیت څخه انکار کړی دی، هغه د واجبیت سند اجتهاد بولي، ددې څخه یې مطلب دادی، چې مسلمانان باید د ځان لپاره یو باایمانه، پوه او وړ شخص مشر وټاکي، تر څو د دوی امور په ښه طریقه سره سرته ورسوي او دوی باید په ټاکلو کې زیات احتیاط وکړي.

کله، چې علوي ډلې زیاتې شوې؛ نو، د وصیت په رایه یې خلافت منتقل کړ، د محمد بن حنیفه د کورنۍ نه عباسي کورنۍ ته ورسیده، محمد بن حنیفه، محمد بن علي بن عبدالله بن عباس ته وصیت کړی وه، هغه خراسان ته هم خپل استازي لیږلي وه، هلته ابو مسلم دغه دعوت پر مخ وړه، دی د خراسان او عراق واکمن شو، ابوالعباس سفاح د عباسي خلافت مشر وټاکل شو، هغه د اهل السنتو او شیعه ډلو څخه یې د بیعت غوښتنه وکړه او هغوی د خلیفه په توګه قبول کړ.

سفاح خپل ورور منصور ځای ناستی مقرر کړ او منصور خپل زامن خپل ځای ناستي وټاکل، په دې ډول خلافت په عباسیانو کې د جانشین ټاکلو یا د خلکو د خوښې مطابق پاتې شو، المستصم په بغداد کې وروستی عباسي خلیفه وه، هلاکو خان ووژلو او خلافت یې رنګ کړ، پاتې کورنۍ یې یې قاهرې ته راغله، په دوی یو احمد الحاکم وه، چې د الراشد د اولادې څخه وه، هلته د الظاهر بیبرس لخوا د حل او عقد او فقهاوو په مشوره خلیفه وټاکل شو، دا خلافت نن دغه شخص ته (چې په مصر کې واکمن دی) ورسید، ددې پیښو څخه بغیر نور ماته د کومې بلې خبرې علم نشته.

تیمور هغه دعوه دار ته مخ ور واړاوه او ورته ویې ویل: تا د قاضیانو او فقهاوو خبرې واوریدې او ددې څخه مالومیږي، کوم خلافت چې ته زما څخه

غواړې، هغه ستا حق نه دی، ته بیرته لاړ شه او خدای دې تاته سمه لاره در وښيي.

د امیرتیمور نه وروسته د قاهرې په لور

کله، چې ما د تیمور سره لیدل، په دې وخت کې زما یوه ملګري، چې د هغه خلکو د رسم او رواج نه خبر وه، ماته مشوره راکړه، چې زه باید امیر ته یو قیمتي تحفه واخلم، ما هم د کتابخانې څخه د قران شریف یوه ښکلې نسخه، یو ښکلی جای نماز او یوه د ابوبصیري ښکلې قصیده، چې د حضر محمد صلی الله علیه وسلم په اړه یې ویلې وه، د ځانه سره واخیستل او د مصر د مټایانو یو ډبه مې هم د ځانه سره واخیسته او د تیمور خدمت ته حاضر شوم، په دې وخت کې هغه د قصرالابلق په دربار کې وه.

کله، چې هغه زه ولیدم؛ نو، ودریده او راسته طرف ته یې د کیناستو اشاره وکړه، زه کیناستم، دواړو خواوو ته د چغتایې د قبیلې مشران هم ناست وه، خادمانو تحفې واخیستې او تیمور زما په طرف متوجه شو، کله، چې یې د قران شریف نسخه ولیده؛ نو، ودریده او نسخه یې په خپل سر باندې کیښوده، بیا مې د هغې مخې ته قصیده وړاندې کړه، هغه د قران شریف او قصیدې په اړه زما څخه څه پوښتنې وکړې او ما هغه څه ورته وویل، چې ماته مالوم وه، بیا مې د هغه مخې ته جای نماز وړاندې کړ، هغه واخیست او ښکل یې کړ، د مټایانو ډبی مې هم ورکړ، هغه د رسم مطابق یو څو مټایي واخیستل او نور یې په خلکو باندې تقسیم کړل، هغه ټولې تحفې قبولې کړې او د خوښی اظهار یې وکړ.

ما د خپل ځان او هلته د موجودو دوستانو په اړه څه ویل غوښتل، ورته کړه مې، الله دې ستا مرسته وکړي، زه ستا حضور ته څه ویل غواړم، هغه وویل، ووایه او ما داسې وویل:

زه په دې ملک کې دوه ډوله مهاجر (اجنبي) یم، لومړی دا چې زه د خپل هیواد مغرب نه لیرې یم، دویم دا چې زه د قاهرې نه هم لیرې یم، زما کورنۍ او قوم هلته په قاهره کې دي.

هغه راته وویل، ووایه، څه چې ته غواړې هماغسې به وکړم، ما ورته کړه، دې وطن نه لیرې والي زما د زړه ټول خواهشات د یاده ویستي دي، خدای دې تاته بریا درکړي، تاسو ماته ویلای شی، چې زه څه غواړم؟.

هغه راته وویل، د ښار نه بهر لښکرګاه ته زما خواته راشه، زه به ستا لوی لوی خواهشات پوره کړم.

ما ورته وویل، تاسو د خپل نائب شاه ملک په نوم زما په اړه حکم صادر کړئ، هغه اشاره وکړه، چې امر دې اجراء کړای شي، ما د هغه مننه وکړه، دعا مې ورته وکړه او ورته کړه مې، زما یوه بله غوښتنه هم ده.

هغه وپوښتم، هغه څه؟

ما ځواب ورکړ، د قران شریف معلمین، دا معتمدین، دا دفتري خلک او نوره عمله، چې د مصر سلطان پرې ایښي دي، دا ټول ستا د لاس لاندې دي او پاچا به د هغوی نه، نه بې پروا کیږي.

هغه ماته وویل، ته د هغوی په اړه څه غواړې؟.

ما ورته کړه، د امن لیک (امان نامه).

هغه خپل کاتب ته وویل، چې امان نامه دې ولیکي.

ما د هغه مننه وکړه، دعا مې ورته وکړه، د کاتب سره بیرون راغلم، تر دې چې کاتب امان نامه ولیکله، شاه ملک د سلطان نه پرې مهر ولګوه، بیا زه خپلې خونې ته راغلم.

کله، چې د تیمور د تګ وخت راغی او د دمشق د پریښودو اراده یې وکړه؛ نو، زه یې یوه ورځ خدمت ته حاضر شوم، هغه راته وویل، چې ایا ستا سره دلته کومه کچر شته؟.

ورته کړه مې، هو!

هغه راته وویل، ایا هغه ښه ده!

ورته ومې ویل، هو!

هغه راته وویل، ایا ته به هغه ونه پلورې؟ زه غواړم ستا نه یې واخلم؟.

ما ورته وویل، الله دې تا ته بریا درکړي، زما غوندې شخص، ستا غوندې شخص سره کله معامله کولای شي؛ خو، زه به یې هڅې ستا خدمت ته وړاندې کړم او که چیرته نور داسې څناور هم زما سره وي، ستاسو خدمت ته به یې وړاندې کړم.

په دربار کې زما په موجودیت کې، کچر راوړل شو او بیا مې ونه لیده.

یو ورځ بیا زه د هغه په خدمت کې حاضر شوم، هغه راته وویل، ایا ته قاهرې ته ځې؟.

ما ورته وویل، الله دې تاته بریا درکړي، زما غواړم، چې ستا خدمت وکړم؛ ځکه، تا ما ته پناه راکړې او زما کفالت دې کړی دی، که د قاهرې سفر ستا د خدمت لپاره وي، ښه خبره ده، زه به ستاسو لپاره لاړ شم، زما په زړه کې د قاهرې د تګ اراده نشته.

هغه راته وویل، نه! ته به خپلې کورنۍ او خلکو ته ولاړ شې.

ما د تیمور سره خدای پاماني وکړه او رخصت مې ترې واخیست.

زما او د قاصد تر منځ د لارې پر سر اختلاف رامنځته شو، د یو بل نه جلا شو، هغه د خپلې او د خپلې ډلې سره روان شو، د قبائلو یوې ډلې زموږ لاره ونیوله او هغه څه، چې زموږ سره وه، ټول یې راڅخه واخیستل، ځان مو ترې خلاص کړ او یو کلي ته ورسیدو، په داسې حال کې، چې تقریبا بربنډ وو، دوه، درې ورځې وروسته الصبیبه ته ورسیدو، هلته مو نوې جامې واغوستې، بیا صفدر ته روان شو او هلته هم څو ورځې تم شو.

بیا کوچنۍ اسیا ته ورسیدو، هلته مو یوه بیړۍ ولیده، چې د سلطان بن عثمان وه، د مصر طرف ته روانه وه او یو سفیر هم په کې وه، چې پیغام یې د ځان سره اخیستی وه او بیرته روان وه، د هغوی سره سپاره شو او غزې ته ولاړو، هلته

کوز شوم، بیا د هغه ځایه قاهرې ولاړم، زه د ۸۰۲ هـ کال د شعبان په میاشت کې هلته ورسیدم.

ما د مغرب واکمن ته یو لیک ولیکه، هغه څه چې زما او د تیمور تر منځ تیر شوي وه، هغه مې ورته ولیکل.

د لیک یوه برخه به یې دلته رانقل کړو:

زما سره د هغه د ملاقات پرته بله کومه لاره نه وه، زه د هغه سره ۳۵ ورځې وم، هر سهار او ماښام به د هغه خدمت ته حاضریدم، بیا یې زه رخصت کړم او په ډیر خوښ حالت کې یې ماته رخصت راکړ او زه بیرته قاهرې ته راغلم.

هغه ما نه کچر وغوښت، ما ورکړ، هغه، هغه اخیستل غوښتل؛ خو، ما مناسبه ونه ګڼله او همداسې مې ورکړه. هلته د سلطان فرج یو قاصد موجود وه، بیا یې د هغه په لاس ماته د کچر قیمت راولیږه او ما د الله تعالی شکر اداء کړ، چې د دنیاوې غمونو نه یې نجات راکړ.

دغه تاتاري خلک د جیحون د صحرا څخه راوتي دي، دغه علاقه د جیحون او چین تر منځ پرته ده، د دوی مشهور مشر چنګیز خان وه، سلجوقیان یې مات کړل او عراق پورې سیمې یې فتحه کړې او خپل سلطنت یې په خپلو درې ځامنو چغتایې، طولي او دوشي خان باندې تقسیم کړ.

چغتایي په ټولو کې مشر وه، هغه ته یې ترکستان، کاشغر، الصاغون، الشاش، فرغانه او جیحون ورکړل، طولي ته خراسان، عراق، فارس، سجستان او سند ورکړل شول، د هغه ځوی هلاکو وه او دوشي ته بلاد او د خوارزم ترکستاني حصه ور په برخه شوه.

د هغوی یو بل ورور هم وه، د هغه نوم اوقدائي وه، دی د ټولو مشر(سردار) وه، هغه ته به یې خان وایه، دا نوم په اسلامي هیوادونو کې د خلیفه د لفظ مترادف دی، د هغه کوم اولاد نه وه او مړ شو.

هلاکو بغداد، عراق، فرات او دیار بکر ونیول، شام یې هم فتحه کړ، هغه شام پرېښود او ولاړ؛ مګر، اولادې یې څو ځلې لښکر کشۍ پرې وکړې؛ خو، د مصر سلطانانو هغوی په شاه کړل، د هلاکو د اولادې حکومت د ۷۴۰ او ۷۴۹ هـ کلونو تر منځ ختم شو.

بیا د اتمې پیړۍ په اوومه یا اتمه لسیزه کې، د چغتایې کورنۍ یو بل امیر راپورته شو، چې امیر تیمور ورته ویل کیږي، په عوام کې د تمر په نوم مشهور دی.

امیرتیمور د ډیرو قوي پاچاهانو څخه دی، ځینې خلک علم د هغه پورې تړي، دوی د علي (رض) کورنۍ ته ډیر احترام لري، ځینې خلک د دوی پورې جادوګري هم تړي؛ خو، ما په کې هیڅ ونه لیدل او دا خبره درسته نه ده، حقیقت دادی، چې هغه (تیمور) ډیر ذهین او د بصیرت خاوند دی.

د هغه عمر د ۶۰ یا ۷۰ کلونو تر منځ دی، په یو جګړه کې یې راسته پښه لګیدلې ده، ګوډ دی، کله، چې نږدې ځي؛ نو، پښه یې ورپسې ځنګیږي؛ خو، کله، چې لیرې ځي؛ نو، خلک یې اوچتوي او بیا بوځي.

په هر حال، د خدای فضل دی، ملک د خدای دی او هغه یې، چې هر چاته وغواړي ورکوي یې.

په قاهره کې د قاضي په حیثت په دریم، څلورم او پنځم ځل ګمارل

ابن خلدون وایې:

کله، چې زه د امیر تیمور سره وم، په قاهره کې زما د مرګ خبرې خپرې شوې وې، د مالکي مذهب یو شخص جمالالدین الاقفهسي د قاضي په دنده ټاکل شوی وه، دا شخص د قوي حافظې خاوند وه، لوی عالم او یو دیندار انسان وه، په مذهبي امورو کې ډیر محتاط وه هغه ددې کال په جمادي الاول کې مقرر شوی وه، کله، چې زه قاهرې ته ورسیدم، هغه ما ته متوجه شو، هغه د شعبان په اخر کې ماته په خپله خوښه دنده وسپارله، زه بیا قاضي شو، ما په ډیره ښه توګه دنده تر سره کوله او ټولې شخصي دښمنۍ او تربګنۍ مې هیرې کړې.

هغه خلکو زما مخالفت پیل کړ، کومو چې په ایمانداری سره پریکړې نه کولې او هغوی د خپلو نفسونو سره انصاف هم نه کاوه، هغوی د سلطان نه غوښتل، چې یو بل مالکي قاضي جمالدین ابساطي دې مقرر کړای شي، دې شخص خپلو دوستانو څه رشوت هم ورکړ او په خپلو پریکړو کې یې د تخفیف ژمنه هم وکړه، خدای دې د هغوی سره حساب وکړي، هغه یې د ۸۰۴ هـ قمري کال د رجب په پای کې قاضي مقرر کړ، سلطان په خپله پریکړه بیا غور وکړ او هغه یې د همدې کال په پای له دندې گوښه کړ، زه بیا قاضي شوم، حالات هماغسې وه، ابساطي یې د ۸۰۶ هـ کال په ربیع الاول کې بیا قاضي مقرر کړ، د حل او عقد مشرانو زه بیرته د همدې کال په رجب کې قاضي مقرر کړم؛ خو د همدې کال په شعبان کې یې بیا زه گوښه کړم او ابساطي یې د قاضي په حیثت وټاکه، په دنیاوي کارونو کې ټولې کړنې د الله تعالی دي.

## ۲۳ کاله په مصر کې

ابن خلدون په مصر کې ۲۳ کاله تیر کړل د (۷۸۴ – ۸۰۸) پورې ؛خو، دومره د غمه ډک او خطرناک نه؛ مگر، دلته ابن خلدون زیاتې مادي گټې ترلاسه کړې.

هغه ژوند، چې ابن خلدون په شمالي افریقا کې تېر کړی وه، هغه ډیر خطرناک او د ستونزو نه ډک وه، د هغه ځای ژوند به، کله د غربت سره مخ کړ او کله به یې لوړو پوړیو ته ورسوه، په مصر کې ابن خلدون د یو عادي فرد په څېر ژوند کاوه، د سیاسي چارو سره یې هیڅ تړاو نه وه؛ مگر، په شمالي افریقا کې په سیاست کې برخه اخیسته، په مصر کې یې سیاسي کالي وغورځول او د یو عالم، فاضل او محقق شخص کالي یې په تن کړل، په مصر کې ورسره د دوه سترو کارونو سره مخ شو، یو یې د کورنۍ له منځه تلل او بل د ستر فاتح امیر تیمور سره لیدل.

په علمي کارونو، کې، یې دوه سترې لاسته راوړنې درلودې، یانې مشهور کتابونه تاریخ او مقدمه یې ولیکل، دا کتابونه یې مصر ته د راتگ نه مخکې بشپړ کړي وه، موږ ته په دې اړه مالومات نشته، چې په مصر کې د اوسیدو په دوران کې یې کوم کتاب لیکلی دی او کنه، هو! هلته سترې کتابخانې موجودې وې او

کیدای شي، چې د خپل کتاب په درستولو کې یې د هغو مأخذونو نه ګټه اخیستي وي، هغه په مصر کې د خپل ژوند ټول حالات د مرګ د وخت پورې ولیکل، کله، چې په شام کې وه؛ نو، شمالي افریقا د هیوادونو په اړه یې تفصیلي لیکنې وکړې او هغه یې د امیر تیمور مخې ته وړاندې کړې، په دې کې هیڅ شک نشته، چې د خطبو او تدریس پر مهال یې خپل نظریات او فلسفه هم بیان کړې ده.

په خپل وتلي کتاب مقدمه کې د مصریانو په اړه داسې لیکي:

مصری داسې قوم دی، چې د عیش، عشرت او د لوبو له ننداري نه بې پروا دی، د ژور فکر او راتلونکي لید خاوندان دي. ابن خلدون وایي، چې ددې وجه د مصر پریوت(موقعیت) دی، د مصر اقلیم هم د مصر په خلکو باندې ژور اغېز لري، په دې وخت کې د مصر واکمن یو د بل سره په جګړو بوخت وه او د حسد او کینې فضا موجود وه.

د هغه په خطبو کې به وتلی مؤرخ او د حدیثو ستر استاد او پوه ابن حجر عسقلاني هم موجود وه، ابن حجر په خپل کتاب (د مصر قاضیان) کې وایې، چې، زه به زیاتره وخت د هغه خطبو ته حاضریدم او د هغه د علم په ځانګړي ډول د تاریخ د علم نه به مې ډیره استفاده کوله، هغه د علم خزانه وه، یو ستر شاعر وه او یو ښه نقد کوونکی هم وه، په حکومتي اصولو او حکومت باندې ښه پوهیده.

ددې تر څنګ ابن حجر په ابن خلدون باندې څه نیوکې هم کړیدي، هغه وایې، ابن خلدون یو تکړه مؤرخ وه؛ خو، په حقیقي علم باندې دومره نه پوهیده، په ځانګړي ډول د ختیځو هیوادو په تاریخي پیښې باندې یې پوره برلاسټیا نه درلوده، مقریزي د هغه د کتاب ستاینه کړې؛ خو، ابن حجر پرې نیوکه کړې ده، ابن حجر وایي، هغه څه چې د ابن خلدون کتاب مقدمې ته یې بریا ورکړې، هغه د هغه د بیان طرز او په مهارت سره د الفاظو بیان دی، ابن حجر د هغه قاضي توب په اړه وایي، چې، ابن خلدون ډیر جدي وه، په داسې حال کې، چې مصریان د دومره جدییت او سختوالي سره عادي نه وه، هغه د لوړ پوړو، کاتبانو، چارواکو او شاهدانو سره د حد نه زیاته سختي کوله، ابن حجر په خپلو لیکنو په ابن خلدون باندې دیرې نیوکې کړي دي، ابن حجر وایې، ابن خلدون د خلکو سره

مینه کمه او نفرت یې زیات کاوه، د خلکو سره به ډیر په تونډ حالت کې مخ کیده، د عدالت خونې نه بهر به یې نرمي کوله، خلکو هیڅ نه خوښوه او خلک به هغه نه لیرې ګرځیدل.

دغه خبرې او نیوکې د شخصي تعصب او کینې ښکارندوی دي، د ستر مؤرخ ابن خلدون یو ستر دښمن البش بشي نومیده، بشي د ابن خلدون سرسخت دښمن وه، هغه هم د مصر دقاضیانو تاریخ لیکلی دی، د هغه لیکل شوی کتاب زما په لاسونو کې نشته، د هغه خبرې یوازې ابن حجر په خپل کتاب رانقل کړې دي.

د ابن حجر ذکر شوې خبرې ډیرې عجیبي دي، هغه د ستر مؤرخ د شخصیت دتیټولو عجیبه کوښښ کوي، د ابن حجر په شان نور سترو فقهاوو هم په ابن خلدون باندې نیوکې کړي دي، لکه، جماالدین البشي ښښ، الرقیقي او بدرالدین العیني، دغه جګړې د نهمې هجري قمري پیړۍ پورې لیدل کیږي.

د ابن حجر شاګرد السخاوي هم په ابن خلدون باندې ډیرې نیوکې کړي دي، سخاوي د دروغو پیښنو، غلطو نیوکو او دروغجنو داستانونو له مخې په هغه باندې نیوکې کړي دي، چې خپله کینه او حسد یې په خپل کتاب (الدعوة اللحمي) کې ښه څرګند کړی دی؛ خو، په خپل یو کتاب کې یې، د ابن خلدون د کتاب مقدمې ستاینه کړې ده.

بل خوا، داسې یوه ډله هم وه، چې د ابن خلدون د کړنو او خدمتونو ستاینه کوله، دوی هر وخت د هغه خیر غوښت، ددې ډلې مشري تقي الدین المقریزي کوله، دی په ځوانی کې د ابن خلدون درسونو ته حاضریده او د هغه د علم، نظریاتو او افکارو څخه ډیر اغیزمن شوی وه، مقریزي به د ابن خلدون نوم ډیر ستر یاداوه، هغه ته یې د (زموږ سردار، زموږ استاد، ستر مفکر، نابغه، باعمله عالم، بې جوړې قاضي) لقبونه ورکړي وه، په خپل کتاب (السلوکي) کې یې د ابن خلدون د مصر او شام د حالاتو ذکر کړی دی، هغه په خپل یوه کتاب (درود العقود الفریضه) کې د ابن خلدون کتاب (مقدمه) یو ستر شهکار بللی دی، هغه وایې، دا یو بې مثاله کتاب دی، ددې په شان کتاب لیکل د نورو خلکو و وس کار

نه دی، دا یو ډېر علمي او سائنسي کتاب دی، دا کتاب د کائناتو په حالاتو باندې خبرې کوي او د بیان انداز یې بې مثاله دی.

ابن حجر د مقریزي د ستاینې مخالفت کړی دی، ابن حجر او شاګرد یې السخاوي د مقریزي خبرې دروغ بللي دي، ابن حجر وایې، چې مقریزي فاطمي وه او د ابن خلدون ملاتړی وه، وروسته وایې، چې مقریزي د ابن خلدون په موقف باندې نه پوهیده.

د مقریزي تحقیق، توضیح او تشریح د ابن خلدون سره زیات ورته والی لري، مقریزي د قومونو د زوال په اړه درې ټکي وړاندې کړي دي.

۱- د حکومت په لوړو څوکیو باندې د بدو اشخاصو ټاکل، که مذهبي خلکو وي که نظامي، د هغو لوړو خلکو جهالت، کم علمي او نا اهلي.

۲- د ځمکو د ټیکې ورکولو لوړوالی نسبت عام تولید ته.

۳- د پیسو قیمت غورځیدل.

ددې درې عواملو تائید په مصر او نورو اسلامي ملکونو کې هم شوی دی.

وروسته هغه په ټولنیز حالت باندې خبرې کوي او مصري ټولنه په اوو طبقو باندې ویشي.

۱- دولتي چارواکي

۲- سوداګر، ځمکوال او نور امرین

۳- دوکانداران او نور کوچني سوداګر او کوچني ځمکوال

۴- بزګر او مزدوران

۵- غریبان، فقها او طالبان

۶- کارګران، فنکاران او ټیټ رتبه خلک

۷- زیات غریب خلک، چې په خیرات باندې خپل ژوند تیروي

په ټولنیزو چارو کې مقریزي د خپل استاذ ابن خلدون نه اغیزمن شوی دی او د خپل استاذ د تحقیق او څیړنې لار یې نیولې ده، لکه، څرنګه چې مو په پورتنې مثال کې ولیدل. ابن خلدون هم په خپل کتاب (مقدمه) د قومونو په عروج او زوال باندې خبرې کړي دي، د هغوی علتونه یې، پیسې، محصولات، عدالتي نظام، انصاف او بې انصافي، د مساواتو نه موجودیت او نور بیان کړي دي، چې په یو تمدن باندې ستر اغیز لري.

یو بل مصري مؤرخ، ابوالحاسن ابن تغري بیروي هم د ابن خلدون د علم، لیاقت او فضلیت ډیره ستاینه کړې ده، هغه د خپل استاذ مقریزي په شان د ابن خلدون نه اغیزمن شوی وه، د ابن خلدون د قاضي توب د دندې یې ډیره ستاینه کړې ده، وایې، چې د ډیر علمیت خاوند وه او هر خاص او عام به یې احترام او درناوی کاوه.

د ابن خلدون د کتاب په اړه مهمه خبره داده، چې د هغه وخت زیات علماوو او ادیبانو ترې استفاده کوله، د بیلګې په توګه، ابوالعباس القلقاشذي په خپل کتاب (صبح العشاء) کې ځای، ځای ترې ګټه اخیستې ده.

پورته د ابن خلدون د ژوند د مصر حالات په لنډ ډول بیان شول، د ستر مؤرخ ۲۳ کلن ژوند، چې هلته (مصر) کې یې تیر کړ، د شمالي افریقا د ژوند نه بیخې بدل وه، په افریقا کې یې د یو سیاسي شخصی په توګه فعالیت کاوه او په هر ډول سازشونو کې دخیل وه؛ خو، په مصر کې یې بل ډول ژوند غوره کړ، په مصر کې د یو عالم او فاضل شخص په حیث راڅرګند شو، په شام کې یې د امیر تیمور او افریقایې هیوادونو تر منځ دوستانه اړیکې جوړې کړې؛ خو، د مصر په سیاست کې یې هیڅ ونډه نه درلوده.

د ښځې او ماشومان له منځه تللو ډیر خفه او غمجن کړی وه، د هغه په ذهني فشار کې یې زیاته ونډه درلوده، هغه ددې پیښې په اړه وایې: دې پیښې زه ډیر زیات خفه کړم، ما د یوه راهب په توګه د ژوند تیرولو پریکړه وکړه.

دا ډیره مهمه پوښتنه ده، چې دا ستر مؤرخ په مصر کې چیرته اوسیده؟.

ابن حجر د جماالدین البش بشي نه دوه روایتونه رانقل کړي دي، هغه وايي، زه یوه ورځ د الصلیحیاه طرف ته روان وم، چې ابن خلدون مې ولید، خپل کور ته روان وه، د هغه سره یې ځیني معاونین او قاضیان هم وه، ددې څخه مالومیږي، چې ابن خلدون د الصلیحیاه سره نږدې چیرته اوسیده، یاني په هغه ځای کې، چې چیرته یې چې مدرسه درلوده. دویم روایت داسې دی، کله، چې په ۸۰۳ هـ کال د دمشق نه مصر ته راغی او قاضي القضات مقرر شو؛ نو، د نیل د رود په غاړه یې ژوند تیرول غوره کړل، ددې څخه مالومیږي، چې ستر مؤرخ د نیل د رود په کومه کلیواله سیمه کې اوسیده، دا هم شونې ده، چې هغه په الفسطاس کې ژوند تیر کړی وي؛ ځکه، هلته د مصر د امرینو ښکلي کورنه جوړ شوي وه.

د ستر مؤرخ په د وفات په اړه، السخاوي وايي، چې هغه د باب النصر نه بیرون د صوفیاء په هدیره کې خاورو ته سپارل شوی دی، مقریزي وايي، دغه هدیره په اتمه هجري پیړۍ کې د الصلیحیاه د مدرسې صوفیانو د صوفیانو د ښخولو لپاره اباده کړې وه.

هغه واده کړی وه؛ خو، داسې مالومیږي، چې هغه خپلې ښځې او ماشومانو ته دومره اهمیت نه وه ورکړی، دا خبره د هغوی د مرګ نه وروسته ښه جوتیږي، چې هغه یې دومره ډیر نه وه غمجن کړی، څومره چې په کار وه، هغه خپله وايي، په ما باندې یو مصیبت راغی، چې زما مال او اولاد یې د قیامت د ورځې پورې ضایع کړ.

که چیرې د هغه مشهور هیوادوال وزیر ابوالقاسم مغربي، چې د فاطمیانو، عباسیانو، عراق، شام او نورو سلطنتونو د پاچاهانو په دربار کې یې زیات نفوذ درلوده او د ابن خلدون نه درې پیړۍ وړاندې یې ژوند کاوه، هغه ددې لست څخه وباسو؛ نو، په اسلامي تاریخ کې، د ابن خلدون نه زیات پوه، ذهین، د خپلو خواهشاتو لپاره د مذهب قربانوونکی وه او نورې ځانګړتیاوې په کې موجودې وې، چې د هغه په شان بل لیکوال کې نشته، زموږ لپاره د ابن خلدون ذهانت، لوړ فکر، د علم پراختیا، پوخوالی او د رایې سختوالی ډیر مهم دی. ابن خلدون یوازینی شخص وه، چې فلسفه یې په ټولنیز قالب کې واچوله، دا به ډیر ناوړه او

غلطه خبره وي، چې موږ د ابن خلدون غوندې شخصيت باندې نيوکه وکړو، په داسې حال کې، چې د هغه په لوړوالي کې هيڅ شک نشته.

ابن خلدون د ۷۴ کلونو په عمر، د ۱۴۰۶ ز کال د مارچ د مياشتې په ۱۵ ورځ وفات شو، دا ستر او رنګين ستورى پريوت او د قاهرې په صوفياء هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

## دويمه برخه

### ابن خلدون يو فلسفي، تاريخپوه او ټولنپوه

#### د ټولنپوهنې بنسټ ايښودونکی

ابن خلدون تاريخ داسې يو علم بولي، چې بايد په پوره بې طرفۍ سره ولوستل شي، هغه تاريخ په نويو اصولو او نوي انداز کې وړاندې کړ، هغه په خپله مقدمه کې داسې اصول وړاندې کړي، چې د هغې په رڼا کې د تاريخ زده کړه اسانيږي، په دې کار سره، د تاريخ په نقد، تجزيه او پوهه لاسته راوړلو کې اسانی پيدا شوې.

ابن خلدون تاريخ د يو ازاد علم په توګه ومونډ، هغه تاريخ يو دلچسپ علم بولي، هغه دې کار ته د تحقيق او څيړنې له لارې ورسيد.

ابن خلدون تاريخ د يو علم په شکل وړاندې کړ، داسې علم، چې د تير وخت رښتيا او دروغ ټول ثبتوي، تاريخ د ټولنې کړنو، مسائلو او ستونزو ته د حل لارې لټوي؛ ځکه، نو تاريخ داسې يو علم شو، چې د ثبوت نه بغير کوم دليل نه مني.

ابن خلدون ددې علم (تاريخ) په واسطه د انساني ټولنې د ټولو اړخونو، د کوچيو قبائلو نه واخله تر د متمدنو ټولنو، ښارونو او هيوادو د خلکو مطالعه کوي، هغه د قومونو د عروج او زوال عوامل بيانوي، څنګه يو قوم د پرمختګ په

لاره قدم ږدي، بیا مخکې ځي، ځواني پرې راځي، زړېږي او وروسته بیا ډوبېږي. هغه د حکومت او ټولنې خصوصیات، د هغو د جوړولو عناصر، انساني ټولنې، واکمن او رعیت او په ټولنیز ژوند کې موجودې ستونزې او بالاخره د هغوی په له منځه تلو باندې تبصرې کوي.

ابن خلدون په ټولنه کې ټولنیز او اقتصادي حالت، د واکمنو څخه د خلکو غوښتنې، د معاشاتو منبع، ساینسي علوم، صنعت او تجارت په اړه خبرې کړي دي، کومه مبالغه یې نه ده کړې، بلکه هر څه یې، چې ویلي حق او ریښتیا یې ویلي دي.

ابن خلدون خپل کتاب په شپږو لویو برخو ویشي، لومړی برخه کې انساني ټولنه، ډولونه یې او په نړۍ کې یې په رول باندې خبرې کوي، دویمه برخه کې په کوچیاني ټولنو، قبائلو او وحشي قومونو باندې غږیدلی دی، په دریمه برخه کې په حکومت، خلافتونو، حکومتونو، پاچاهیو او د هغوی په رول غږیدلی دی، له دې وروسته په متمدیو ټولنو، هیوادونو او کلیو، سوداګرۍ، د معاشاتو منبع او په اخر کې په ساینسي علومو باندې یې په تفصیل سره خبرې کړي دي.

## ټولنیزه نظریه

د ابن خلدون نه مخکې هیچا هم په دې موضوع باندې بحث نه دی کړی او نه یې کوم ځانګړی کتاب پرې لیکلی دی، یوناني فیلسوفانو په نورو امورو باندې بحث کړی؛ مګر، ځینو ځایونو کې یې دې موضوع ته هم اشاره کړې ده، هغوی دې موضوع ته کوم مستقل حیثیت (شکل) نه وه ورکړی، ابن خلدون هم په خپل کتاب کې دا یوه ځآنګړې موضوع نه ده ګڼلې، هغه د انساني ټولنې په پرمختګ باندې بحث کړی دی، چې ددې په وجه باندې په ټولنه کې تغیرات منځ ته راځي، ابن خلدون د انساني ژوند دوه اساسي اصول بیان کړي دي.

ابن خلدون د انساني ژوند لومړی اصل د یو ځای اوسیدو بیان کړی دی، لکه څنګه چې د انساني ټولنې اساس په ورورۍ باندې اینودل شوی دی، د خپلو اړتیاو د پوره کولو لپاره هغه نورو خلکو ته اړ دی، که انسان یو ځای ژوند ونه کړي؛ نو، ژوند به یې ډیر خراب شي. هغه دې حالت ته په کتو سره انسان یو

ټولنيز حيوان معرفي کړی دی، د ابن خلدون په نظر دويم اساسی اصل هغه دفاعي اړتياوې دي، هغه وايي، حيوانات دې ته اړتيا نه لري، چې د هر يو نسل ځانګړې ساتنه وکړي او يوه، يوه ډله جوړه کړي، الله تعالی هر ځناور ته د دفاع لپاره اعضا ورکړي دي او خپله ساتنه په خپله کولای شي او د هغوی ډله بندي (ګروپ بندي) ضروري نه ده؛ خو، الله تعالی انسان ته داسې دفاعي ځواکونه نه دي ورکړي، هغه وايي، د انسان ټولنيزيدل ډير مهم دي او دې ډول ټولنې ته د (عمران) يا (ټولنې) نوم ورکوي، هغه وايي، کله، چې ټولنه منځته راشي؛ نو موږ ته د سياست ضروروت دی.

ابن خلدون وايي، انسان لکه حيوان دی؛ ځکه، د ژوند اساسي اړتياوې لکه غذا غوښتل، د ځای پيداکول او يا نور صفات په دواړو کې يو شان دي، هغه څه چې انسان ته يې په حيوان برتري ورکړې، هغه فکر دی، انسان د فکر پواسطه د خپلو همجنسو سره په معامله کې غور کوي او ټولنيز ژوند خپلوي، د فکر همدا قوت انسان ته بدي او نيکې ښيي، د همدې فکر پواسطه انسان علم او فن زده کوي، ددې پواسطه انسان خپل راتلونکی روښانه کوي، همدا فکر دی، چې انسان د انبياوو د علم نه خبروي او د اخرت درسته لاره ورته ښايي، ددې پايله دا شي، چې د علماوو يوه ټولنه رامنځته شي او هغوی دا علم نورو ته رسوي.

## د ابن خلدون ټولنيزه فلسفه

د ټولنيزو علومو د قانون په تدوين(ليکلو) کې ابن خلدون د ټولو ليکوالو څخه مخکې دی، دده نه مخکې د يونان فيلسوفانو ځينې کارونه کړي وه، يو چا ريښتيا ويلي دي، چې د ابن خلدون د مقدمې د کتاب په مقابل کې د يونانيانو تاريخ هيڅ دی، د ابن خلدون کتاب (مقدمې) د اروپا د خلکو توجه د ختيځ د خلکو په لور راوګرځوله.

ابن خلدون د تمدن دوه اړخه وړاندې کړي دي، يو خارجي او بل داخلي، د خارجي څخه يې موخه طبيعت دی، لکه، ديني عقائد، اب و هوا سکونت ـ او د داخلي څخه يې موخه هغه څه دي، د کوم په واسطه چې يو تمدن يا يوه ټولنه پرمختګ او ژوند کوي.

د ابن خلدون له نظره انسان طبیعتا ټولنیز دی، دا د یونان او عربو هغه نظریه ده، کومه چې اکست کونت په خپله وضعیه فلسفه کې په څلورم جز کې بیان کړې ده، ابن خلدون د ارسطو ددې نظریې سره موافق دی، چې ټولنه د فرد لپاره د بریا ځای دی، دا هماغه نظریه ده، کومه چې هربرټ سپنسر په خپله فلسفه کې بیان کړې ده، ابن خلدون ځینې داسې واقعیتونه رامنځته کړي، د کومو سره چې یوناني فیلسوفان نا اشنا وه، ابن خلدون د انساني او حیواني ټولنو امتیازات بیان کړل، هغه وایې، د حیواني ټولنې عادت طبیعي وي؛ خو، د انساني ټولنې طبیعت د عقل، فکر او غور نتیجه وي.

میکیاویلي د ابن خلدون سره ورته نظر لري او مونتیسکو هم د ابن خلدون د نظریې سره موافق دی.

ابن خلدون په اب و هوا (اقلیم) باندې بحث کړی دی او هغه یې د ټولنې یو لومړنی عامل ګڼلی دی، ابن خلدون ځمکه په اوو اقلیمونو باندې ویشلې ده، هغه وایې، په ځمکه کې د برودت او زیات حرارت په رامنځته کیدو سره زیات اختلافات رامنځته کیږي، ابن خلدون وایې، چې د انسان په اخلاقو او جسم باندې د برودت او حرارت ژور تاثیرات وي یا په نورو ټکو، د قومونو او هیوادونو په مدنیت او کوچیتوب کې اختلافات لیدل کیږي، انګریز مؤرخ (بکل) هم ابن خلدون ته ورته نظر لري.

ابن خلدون وایې، د اطرافو او لیرې پرتو هیوادونو خلک د تمدن نه بې خبره وي، څلور اقلیمونه، حرارت او برودت د ټولو نه زیات اغیزمن رول لري، دا ټول په ابادۍ، تمدن، د علومو په پرمختګ او قوانینو کې زیات اهمیت لري.

د ابن خلدون او مونتیسکو دواړو نظر یو شان دی، حقیقت دا دی، چې دا دواړه د یوناني فیلسوفانو بقراط، ارسطو او فرانسوي جان پودن په لار روان دي.

د ابن خلدون له نظره د انسان د ټولنیزیدو لپاره دریم عنصر مذهب دی، چې دا د هرې انساني ټولنې لپاره ډیر مهم دی، هغه ددې نظریې د ثبوت لپاره مذهبي او فلسفي دلائل وړاندې کوي، چې ابن رشد هم په خپلو کتابونو کې ترې یادونه کړې ده.

د اندلس د حکيم (ابن رشد) په شان ابن خلدون د مذهب او فلسفې د يو ځای کولو کوښښ کړی دی، ددې کوښښ په وجه د ابن خلدون اهميت زموږ سره کميږي؛ ځکه، د هغه استاذ او مشر ابن رشد په حقيقت کې فلسفي نه وه، بلکه د يوازې د فلسفې کتابونو ژباړن وه، ابن رشد د ارسطو د فلسفې کتاب عربي ته وژباړه، ابن رشد د ارسطو کتاب د حکمت پای ګڼلی وه، ابن رشد داسې يو شخص وه، چې د اسلام د شريعت او يوناني فلسفې تر منځ يو ځای والي رامنځته کړي، ابن رشد هيڅوک هم په دې خبره باندې قانع نه کړل، هغه مذهب ته داسې ځای ورکړ، چې يوه فلسفي هم نه دې ته تيار نه وه، چې د ابن رشد نظر دې ومني، د فيلسوفان دا کار د ابن رشد د خفګان سبب وګرځيد او د مذهب پر ضد يې ترې کار واخيست؛ خو، په دې کار سره د ابن رشد په درجه کې کوم کمی رامنځته نه شو؛ ځکه، هغه په خپل فکر او نيت کې درست وه، هغه داسې يو مذهب غوښته، چې اساس يې په عقل او فلسفې باندې اېښودل شوی وي؛ خو، د کفر په اړه دې کومه خبره په کې نه وي.

## د عصبيت نظريه

ابن خلدون وايي، چې د کوچيتوب ژوند د هرې ډلې يا قبيلې لومړنی دوره ده او دا د انساني طبيعت سره مخالف کار نه دی، دائمي سفر، د ځای تغيرول د ژوند د بدلولو ځانګړتياوې دي، د کوچيانو ژوند د رمو پورې تړلی دی، هغه دوی يې څروي، که اوښان ورسره وي؛ نو، په صحراګانو کې ژوند تيروي؛ ځکه، د هغه ځای طبيعت او ظاهري ښکلا د اوښ د طبيعت سره برابره ده، که چيلۍ وي؛ نو خپل ژوند په درو کې تيروي؛ ځکه، ددې ډول حيواناتو لپاره دا ځای مناسب دی، د کوچيانو قوت او طاقت د هغوی يو ډول امتياز دی، په نورو خلکو باندې.

ابن خلدون وايي، عصبيت داسې يو شی دی، چې قبيلې په مينه او

محبت باندې مجبوري او هغوی ته د اتحاد او اتفاق درس ورکوي، دوه شيان دي، چې عصبيت ته قوت ور ښښي، يو د عادت (اخلاقو) احترام او عزت او بل په دايمي ډول د جنګ او دفاع ضرورت، ابن خلدون وروسته په قبيلو باندې بحث کوي، هغه وايي، هره قبيله په څلوريشتم پښت (پشت) کې خپل لوړ اخلاق او

صفات له لاسه ورکوي، هغه وايي، چې د ويني پاکوالی او د جنس لوړالی دوه داسې اصول دي، چې په دې واسطه باندې يوه قبيله قوت حاصلوي او خپل عصبيت ساتي، ددې نه بغير يوه قبيله هم ژوند نه شي کولای او نه د دښمن مقابله کولای شي، دی وايي، يوازې هغه قبائل ژوندي پاتې کيدای شي، چې عصبيت کې بريا تر لاسه کړي.

ددې وروسته ابن خلدون د قبيلو په هغه حالت باندې غږيږي، چې د جنګونو په واسطه سلطنتونه جوړوي، د ابن خلدون دا نظريه په عربو او د بربرو په تاريخ باندې، کوم چې د ځانګړو قبائلو تاريخ دی صدق کوي او دا نظريه يې د اسلام په تاريخ، کوم چې د هيوادونو تاريخ دی، هم صدق کوي. په حقيقت کې ابن خلدون د ختيځ سياسي ليکوال او د لويديځ د سياسي ليکوالو څخه مخکې دی.

ابن خلدون وايي، چې عصبيت او برتري د قبائلو قوت ته وده ورکوي؛ خو، ددې دواړو په څنګ کې يو بل دريم عامل ته هم ضرورت دی، چې هغه سياست يا مذهب دی، دا دريم عامل د قبائلو ګټې خوندي ساتلی شي او کولای شي، چې فتحه او بريا ور په برخه کړي، يا د ابن خلدون نظر داسې دی، چې قبيله هر څنګه وي، بيا هم هغوی ته د يو لوړ شخص ضرورت شته، چې د هغه طرف ته رجوع وکړي او د ټولو اميدونو نظر يې هلته وي، ددې مثال يې د اسلام نه مخکې عربي قبائل ورکړي دي، وروسته ابن خلدون په هغو قومونو باندې خبرې کړي دي، چې پاچاهی يې له منځه تللي دي يا نورو قوي قومونو له منځه وړي دي، بيا يې د بريا او فتحې شرائط او عوامل بيان کړي دي، د هغوی ستونزو ذکر يې هم کړی دی، د کومو سره چې فاتح اشخاص مخامخ کيږي.

## د قومونو د عروج او زوال عوامل

ابن خلدون د قومونو د زوال درې عوامل بيان کړي دي.

۱- د اشرافو کمزوري

۲- د فوځ تشدد

۳- عيش و عشرت

ددې عواملو په موجودیت کې، یو سلطنت نه شي کولای، چې د دریو پیړیو نه زیات حکومت وکړي، دا هم لکه د انسان په شان د کوچنیوالي، ځوانی او زوړوالي دور تیروي؛ خو، دا هم امکان لري، چې یو سلطنت په لومړي وخت کې د زوال سره مخ نشي، موږ وایو، چې دا نظریه د اسلامي دور سره سمون خوري؛ خو، د نورو سلطنتونو سره سمون نه خوري، د ابن خلدون د مشرۍ او فتحې اکثره نظریات د میکیاویلي د کتاب (شهزاده) سره ورته دي؛ خو، په دې کې شک نشته، چې ابن خلدون د میکیاویلي نه مخکې دی او ابن خلدون پرې برتري لري؛ ځکه میکیاویلي د فلورانس حکیم وه او د ابن خلدون نه مخکې تیر شوی دی.

د ابن خلدون د ژوند پیښې او اخلاقي شخصیت د میکیاویلي سره تقریبا زیات ورته والی لري، د دواړو تر منځ یوه پیړۍ توپیر موجود دی، دا دواړه تقریبا د یو شان اشخاصو د فکر نه متاثره شوي دي او دواړه د انساني اخلاقو، قوانینو او قومونو په اړه یو شان تجربه او علم لري.

ابن خلدون د ابن رشد فلسفه په ژور ډول مطالعه کړې وه او د خپل وخت د زیاتو عقایدو د خپلولو کوښښ یې کړی وه، په دوه مسائلو کې ابن خلدون ته په اګوست کومت باندې برتري حاصله ده، یو د ابن خلدون دا نظر، چې فلسفه د موجوداتو علم دی، د ارسطو په شان خلک، چې استاذ یې بولي، ددې غوندې فکر نه خبر نه وه، د ابن خلدون دا نظر اګوست کومت شپږسوه کاله وروسته وړاندې کړ، په دې مسئله کې ابن خلدون د ارسطو څخه هم مخکې دی.

دویم، د ابن خلدون دا قول، چې په انساني ټولنه کې قواعد او قوانین موجود دي، په دې قوانینو سره ابن خلدون ټولنیز علوم په منظم صف کې داخل کړل، په دې اصولو کې هم ابن خلدون ته په اګوست کومت باندې برتري حاصله ده، د هغه په نظر ددې فلسفې اساس په دوه امورو باندې ایښودل شوی دی، یو د قومونو مطالعه او تجربه یې، دویم د قوانینو ادارک، کوم چې په ټولنو کې موجود وي او د عقلي تجربو او فکر په واسطه پراختیا مومي، اګوست کومت چې کله، هم خپلې دوه نظریې (سکونیات او حرکیات) تشریح کوي؛ نو، د ابن خلدون په

فکر باندې هیڅ شی نه اضافه کوي؛ ځکه، هغه وايي، چې د تجربې او علم په واسطه موږ حقائق لاسته راوړی شو او د عقل په واسطه عقل مالوم ولای شو.

## ټولنه او کلتور

ابن خلدون انساني فطرت په ژور ډول مطالعه کړی وه او د یو نوي علم، کلتور او سائنس اساس يې ایښی وه، د ابن خلدون په نظر د کلتور څخه موخه د انساني فطرت تجزیه او د انساني ټولنې د جوړولو عوامل پیداکول دي، ددې تر څنګ د تاریخ د بیروني واقعاتو څخه داخلي واقعات څېړل دي او سپړل دي.

تاریخ او د کلتور علم د یو حقیقت د دوه اړخونو د مطالعې نوم دی، تاریخ بیروني واقعات مالوموي؛ خو، د کلتور علم د دغو واقعاتو عوامل تشریح کوي، په دې مانا چې د تاریخ نه وروسته د کلتور علم راځي، ابن خلدون په دې اړه څو شیان ذکر کړي دي:

۱- انسان په طبیعي ډول په ډلو باندې ویشل شوی دی، یا انسان د نورو انسانانو سره یو ځای ژوند کولای شي، انسان په یوازې ځان هیڅ هم نه شي کولای؛ ځکه، هغه په جسماني ډول د نورو حیواناتو نه کمزوری دی، موږ (انسانان) د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره نورو انسانانو ته اړتیا لرو، که داسې ونکړو؛ نو، نه شو کولای، چې د ځآن لپاره خوراک او ژوند برابر کړو.

۲- انسان او ټولنه په داخلي او بیروني ډول یو د بل سره اړیکه لري، په داخل کې انسان په خپل جسماني قوت باندې تکیه کوي او په بیرون کې په خپل جغرافیایې محیط یانې اب و هوا باندې تکیه کوي او دا شیان په انسان باندې ژوره اغیزه لري.

۳- د انسان او ټولنې اړیکه د روحانیت سره هم نه شلیدونکې ده، یانې هغه نړۍ، چې درک کول يې ناشوني دي.

د ابن خلدون په نظر د کلتور علم یو خپلواک علم دی، د ابن خلدون مخکې هیڅ شخص په دې اړه مطالعه نه ده کړې.

د ابن خلدون په فکر یونانـي پوهانو ځکه په دې اړه مطالعه ونکړه، چې هغو فیلسوفانو د علم په پایلو کې زیاته دلچسپي درلوده؛ خو، د کلتور د علم موخه د تاریخي بیاناتو اصلاح ده او د هغوی په نظر دا کومه ستره موخه نه وه.

د ابن خلدون په نظر ددې نوي علم موضوع انساني نظم رامنځته کول دي، یانې کوم کلتوري مسائل، چې مخې ته پراته دي، هغه د مختلفو ماحولونو پورې تړلي دي، ددې علم لاره په منطق، دلیل او ثبوت باندې ولاړه ده، ددې علم موخه دا هم ده، چې په تاریخي بیاناتو کې ریښتیا او دروغ جلا کړل شي.

نور علوم هم انساني نظم تر څیړنې لاندې نیسي، د هغوی اساسي روشونه د نظر لاندې نیسي، دلیل او ثبوت څیړي، د دروغو او ریښتیا تر منځ توپیر مالوموي؛ خو، د کلتور برتري په دې کې ده، چې دا ټول اړخونه په یو ځل د څیړنې لاندې نیسي او ټول لازمي جزونه دي.

ددې علم موخه د نورو علومو سره توپیر لري؛ ځکه، نو باید دا د یو خپلواک علم په توګه ومنل شي.

د ابن خلدون په نظر د کلتور د علم نه مخکې نور علوم هم موجود وه، چې د نوي ساینس سره مشابه وه، ابن خلدون د پنځو علومو نومونه اخیستي دي، لومړي دوه فنون دي، چې خطابت او سیاست دی، چې پیل یې په یونان کې ایښودل شوی وه، ددې وروسته د اسلامي علومو نوم اخلي، چې په دې کې د وړاندوینې ثبوت او د اسلامي فقهې اساسات شامل دي او اخري علم یې حکیمانه اقوال بللي دي.

د هغه په نظر، فن او خطابت کومه ځانګړې موضوع تر څیړنې لاندې نه نیسي.

د ابن خلدون په نظر سیاست د کور یا ښار په حالاتو کې د تنظیم او ترتیب سره اړیکه لري، ابن خلدون دلته د اخلاقو لحاظ ساتي، تر څو د راتلونکي نسل ساته وکړي.

د سیاست د علم موخه د کلتور د علم سره اختلاف لري، ځرنګه چې ټولنه وي، سیاست یې په همغه ډول ترتیبوي، د کلتور علم د اصلاح سره اړیکه لري، ډیر امکان لري، چې د دواړو موضوع یوه وي؛ خو، نظرونه یې مختلف وي.

## د حکومت نظریه

ابن خلدون وایي، چې د حکومت سمبالوونکی ماشین یو ځل منځته نه راځي او نه په یو ځل د اقتصادي وسائلو څخه کار اخلي، سمبالوونکی ماشین او اقتصاد یې ورو، ورو رامنځته او درستیږي.

د ابن خلدون د پرمختګ نظریه د اوسني وخت د پرمختګ او حکومت د نظریې نه بیخې بل ډول ده، هغه وایي، چې د عروج او زوال د قانون له نظره هر حکومت، ټولنه، دولت، عروج ته رسیږي، وروسته د زوال سره مخ کیږي او د کوم بل حکومت لخوا محکومیږي، د ابن خلدون د پرمختګ نظریه د عروج او زوال یو ډول دایره تشکیلوي.

ابن خلدون د عروج او زوال په فلسفه کې د حکومت او شخص تر منځ یو ډول ورته والی بیان کړی دی او ویلي یې دي، ځرنګه، چې یو ماشوم پیداکیږي، د کوچنیتوب دوره تیروي، بیا ځوانۍ ته رسیږي او بیا د ځوانۍ نه زوړ والي ته رسیږي، همدا حال د حکومت هم دی، کله، چې حکومت جوړ شي، پرمختګ کوي او عروج ته رسیږي، خپل شان و شوکت بښي او بیا د زوال سره مخ کیږي.

## د حکومت پراختیا

د ابن خلدون له نظره حکومت باید خپله ساحه دومره پراخه کړي، چې څومره د هغې ساحې نظم ساتلی شي، قوت باید تقسیم نه شي، حکومت د محدودې ساحې لرونکی وي، هر حکومت باید په خپل لاس لاندې سیمو کې فوځ، چارواکي او ملازمین ځای په ځای کړي، په دې سره حکومت قوي کیږي، که چیرته دوی د هیواد ډیرو لیرو سیمو ته ولیږل شي؛ نو د حکومت قوت به تقسیم شي او مرکزي حکومت به د کمزورۍ سره مخ شي او دښمن به په اسانۍ سره وکولای شي، چې دا هیواد لاندې کړي، ددې لپاره ضروري ده، چې د حکومت د ساحې د پراختیا پر ځای مرکز کې حالات قوي کړای شي؛ ځکه، چې مرکز د حکومت لپاره د

زړه مثال لري، که چیرته مرکز قوي وي؛ نو، ټول حکومت ورسره قوي وي، که مرکز کمزورى وي؛ نو، ټول حکومت (مرکزي او غیرمرکزي) حکومت به ورسره کمزورى وي، په کوم ځاى کې چې د حکومت زیات چارواکي موجود وي، هلته د بریا ساحه ډېر پراخه وي، ابن خلدون د لومړنیو اسلامي حکومتونو مثال ورکړى دى، هغه وايي، چې مسلمانانو په لومړي سر کې زیاتې سیمې ونیولې او ساحه یې پراخه کړه؛ خو، کله چې ددې نیول شویو سیمو د اداره کولو لپاره زیات چارواکي ولیږل شول؛ نو، مرکزي حکومت کمزورى شو.

ابن خلدون د قوي او مستحکم حکومت نظریه وړاندې کړې ده، کله، چې په یوه قوم کې د عصبیت جذبه قوي شي؛ نو، دا قوم د حکومت د پراختیا لپاره اقدام کوي، ځینو کسانو په ابن خلدون باندې نیوکه کړې ده، چې د میکیاویلي په شان د استعمار ملاتړى وه؛ خو، په حقیقت کې د دواړو د نظریو تر منځ د ځمکې او اسمان هومره توپیر لیدل کیږي، د میکیاویلي استعمار په جبر او مکر باندې ولاړ وه؛ خو، ابن خلدون د عصبیت جذبه د قوت د رامنځته کیدو پایله ګڼلې وه.

میکیاویلي خپلو واکمنو ته مشوره ورکوي، چې په جبر، فریب او دهوکې سره دې په نورو هیوادونو باندې قبضه وکړي؛ مګر، ابن خلدون تاریخ په علمي انداز سره مطالعه کړى، پایلې یې ترې راویستي او بیا یې ویلي دي، چې په کومو حالاتو کې دې ترې ګټه واخلي، ابن خلدون د حکومت پراختیا د قومي عصبیت پایله بولي، په دې لحاظ د نیوکه کوونکو دا تور بیخي ناسم دى، چې ابن خلدون د استعمار ملاتړى وه.

## د حکومت ډولونه

ابن خلدون وايي، چې د انساني پرمختګ او د هغوى تر منځ د ګډ کار کولو لپاره د حکومت موجودیت ډېر اړین دى، په حکومت د سولې او امنیت، د قوت او د عامو خلکو د خوشالولو لپاره د سیاسي قوانینو موجودیت ډېر مهم دى، تر څو د واکمنو په شمول ټول خلک د حکومت پر ضد کومه خلاف ورزي ونه کړي، که کوم واکمن د سیاسي قوانینو په نافذلو کې ناکام شو؛ نو، هغه نه شي کولاى، چې حکومت کنترول کړي.

ابن خلدون درې ډوله حکومتونه او موخې بیان کړي دي.

۱- عقلي سیاست (ملوکیت)

۲- مدیني (ښاري) سیاست

۳- دیني سیاست یا خلافت

۱- عقلي سیاست: که چیرته پوه خلک سیاسي قوانین وضع کړي؛ نو دا عقلي سیاست یا ملوکیت دی

د عقلي سیاست دوه نور ډوله هم شته، لومړی هغه حکومت چې په په عمومي ډول د عامو خلکو د فلاح او بهبود لپاره کار کوي او په خصوصي ډول د پاچا د ګټو او حاکمیت د ټینګولو لپاره کار کوي.

دویم هغه ډول حکومت دی، چې په زور او جبر سره د پاچا د حاکمیت د ټینګولو لپاره کوښښ کوي، د عامو خلکو فلاح او بهبود په کې په دویم قدم کې وي، ابن خلدون په دې ډول حکومتونو کې ټول اسلامي او غیر اسلامي حکومتونه شاملوي؛ خو، په دې دواړو کې یو توپیر ته اشاره کوي، چې مسلمان واکمن د شرعي قوانینو له لارې داسې حکومت جوړوي او غیر مسلمان واکمن د وضعي قوانینو له لارې داسې حکوکت جوړوي.

۲- مدیني سیاست

دا ډول حکومت (فاضله مدینه) د فیلسوفانو خیالي حکومت وي، لکه څرنګه، چې یوناني مفکر افلاطون په خپل کتاب (جمهوریت) کې د یو فلسفي پاچا او حکومت نظریه وړاندې کړې ده.

ددې نظریې مطابق، د ټولنې هر وګړی باید خپل ځان داسې اصلاح کړي، چې دولتي چارواکو ته هیڅ اړتیا پیښه نه شي.

د فاضلې مدینې رامنځته کیدل، د امکان نه لرې څه لیرې ښکاري، په دې باندې تقریبا ټولو فیلسوفانو خبرې کړې دي.

د ابن خلدون دلیل دادی، چې یو انساني ټولنه باید په اخلاقي لحاظ دومره لوړه شي، چې د کوم حاکم اړتیا ورته پیدا نه شي.

## دیني سیاست یا خلافت

الله تعالی چې کوم قوانین د خپلو پیغمبرانو علیهم السلام په واسطه نړۍ ته رالیږلي دي، که چیرته حکومت د هغو قوانینو مطابق اداره شي؛ نو، داسې حکومت ته دیني حکومت یا خلافت وایې.

پیغمبرانو چې څومره شریعتونه راوړي دي، په هغوی کې عبادات، احکام او د حکومت کولو قوانین شامل دي، د داسې قوانینو موخه د خدای ج په مخلوق باندې د خدای ج د قانون تطبیقول دي.

په دې حالت کې که کوم پاچا جبر او ظلم کوي؛ نو، هغه د خدای تعالی نافرماني کوي.

خلافت د حکومت هغه ډول سیستم دی، په کوم کې چې حکومت د دین ساتنه کوي، په دې ډول حکومت کې وګړي، د یو بل سره په مینه او سوله کې ژوند کوي.

## د معاشاتو سرچینې

په تمدني ژوند کې زیاتره برخه د انسان د عمل پایله وي، د کوچیانو لپاره، چې په طبیعي ډول څه ضروري وي، هغه اخلي او نور ځان ته تکلیف نه ورکوي، یانې د نور څه د لاسته راوړلو لپاره خواري نه کوي؛ ځکه، خو ارسطو وایې، چې دغه قوم (کوچیان) خپل ژوند په ښکار او لوټ مار باندې تیروي او دوی داسې متواتر کار نه کوي، چې د هغوی د ژوند فعل وي، په داسې حال کې، چې متمدنه خلک لومړی د تولید د طبیعي سرچینو نه ګټه اخلي، بیا چې د هغو څخه څه لاسته راوړي، هغه په داسې شکل جوړوي، چې د هغوی د ضرورتونو لپاره مناسب وي، موږ باید لومړی په هغو سرچینو باندې وغږیږو، چې په متمدن (ښاري) ژوند کې استعمالیږي.

ارسطو او ابن خلدون دواړو انسانانو ته دا حق ورکړی دی، چې د طبیعي سرچینو څخه ګټه واخلي او دواړو یو بل ته ورته دلایل وړاندې کړي دي، البته یو توپیر په کې شته دی، هغه دا چې د ارسطو دلیل ډېر فلسفي دی او د ابن خلدون دلیل زیات دیني اړخ لري، د ارسطو له نظره قدرت (طبیعت) او د ابن خلدون له نظره خدای ج ځمکه او د ځمکې خزانې د انسان د ګټې لپاره پیداکړي دي او قران کریم ددې سربېره د لمر، سپوږمۍ او ستورو یادونه هم کړې دی.

ارسطو وايي، چې د غذا د لاسته راوړلو دا طریقه مخلوق ته د قدرت له خوار ورکول شوې ده او پیل یې د هغه وخت نه شوی، د کله نه چې مخلوق پیدا شوی او تر څو پورې چې قوي کیږي، زموږ لپاره دا عقیده درسته ده، چې نباتات د حیواناتو او حیوانات د انسانانو لپاره پیدا کړی شوي دي، په دې حیواناتو کې، چې کوم ساتل کیږي، دا د انسان د خدمت او غذا لپاره ځانګړي شوي دي؛ خو، د حیواناتو زیاتره یې ځنګلي (وحشي) دي، ددې څخه په لباس جوړولو او نورو ځایونو کې زیات کار اخیستل کیدای شي، که چیرته قدرت کوم شی بې هدفه او بې کاره نه وي پیداکړی؛ نو دا ممکنه ده، چې دا ټول یې د انسان د ګټې لپارې پیداکړي وي او ابن خلدون وايي:

خدای ج د نړۍ ټول شیان د انسان لپاره پیداکړي دي، خدای ج د خپل کتاب (قران کریم) په زیاتره ایاتونو کې انسان ته خپل احسان بیان کړی دی، نړۍ او د نړۍ ټول شیان د انسان په واک کې دي؛ ځکه، خدای تعالی انسان په ځمکه کې خپل خلیفه ګرځولی دی، په مسلمانانو کې یوازې ابوالعلاء معری انسان مخاطب کړی او داسې یې ورته ویلي دي: د هغه څه په اړه چې ته فکر کوې، ستا لپاره حلال دي، په حقیقت کې ستا نه دي، ته (انسانه) یوازې په حیوان باندې ظلم او زور زیاتی کوې او خپل حکومت جوړوې، ای انسانه ته په دې فکر یې، چې د شاتو مچی شات ددې لپاره جوړ کړي، چې ته یې خرڅ کړې یا یې چا ته هدیه ورکړې، په داسې حال کې چې مچی ټول تکلیف او مشقت د ځان لپاره تیر کړی دی. تر څو پورې، چې انسان د نړۍ مشر وي، څنګه چې یې خوښه وي، ګټه ترې اخیستلای شي، په دې شرط، چې د خپل ورور ګټو ته به زیان نه رسوي، هغه ددې مقصد لپاره کولای شي، چې د ټولو وسائلو او روا لارو څخه کار

واخلي، ددې لپاره دوه لارې دي، يو قدرتي او بله اصلاحي، د لومړۍ لارې څخه يوازې ځنګلي سړی کار اخيستلی شي او دا د تمدن نه لاسته نه راځي.

ارسطو او ابن خلدون دواړه په دې نظر دي، چې انسان د طبيعت نه د ګټې اخيستلو حق لري؛ خو، د اساسي اصولو په تطبيق کې د دواړو تر منځ اختلاف موجود دی، ارسطو غلامي رامنځته کوي او روا يې ګڼي او وايي، چې ځينې خلک د ازاد ژوند او ځينې خلک د غلامۍ د ژوند لپاره پيدا شوي دي، په دې اساس لومړۍ ډله حق لري، چې دويمه (غلامه ډله) يې خدمت وکړي.

ابن خلدون غلامي نه مني، هغه په خپلو دلائلو سره دا واضح کړې ده، چې انسان د غلامۍ لپاره نه دی، هغه وايي، انسان فطرتا ازاد پيداشوی دی او په ټولنه کې د انصاف او پرمختګ لپاره دا اړينه ده، چې په ټولنه کې ازادي او د بشريت احترام (برتري) رامنځته شي او دا هغه برتري ده، کومه چې خدای تعالی انسان ته ورکړې ده او انسان يې په ځمکه باندې خپل خليفه او نائب ګرځولی دی.

د جګړې په مسئله کې هم دواړه موافق نه دي، ارسطو جګړه د کسب په قدرتي سرچينو کې شميري؛ خو، ابن خلدون جګړه په سرچينو کې نه حسابوي او ددې سبب هم هماغه دی يانې خدای تعالی ځينې خلک د حکومت او ځينې نور يې د فرمانبردارۍ لپاره نه دي پيداکړي او حقيقت دادی، چې د ابن خلدون فکر د ارسطو د فکر نه ډير پرمختللی دی.

د کسب د سرچينو او د انسان د کوچيتوب او ښاري ژوند تر منځ ژوره اړيکه شته، دغه سرچينې په کوچيانه ژوند کې ډير محدودې وي؛ خو، په ښاري ژوند کې زياتې وي، په دې معامله کې ښاري ژوند ته يوه ځانګړتيا ور په برخه ده، چې انسان يې په خپله پيداکوي، خپله ترې کار اخلي او خپله پرمختګ هم ورکوي.

د ابن خلدون له نظره د کسب لومړنی سرچينه زراعت دی او دا يو داسې مسلک دی، چې يوه قبيله په کې تر هغه وخته بوخته وي، تر څو چې په خپل ځای کې موجوده وي، دا د انسان پخوانی او لومړنی کار هم دی؛ ځکه، دا د

فطرت سره ډېر نږدې دی، په عوامو کې مشهوره ده، چې زراعت د ادم علیه السلام مسلک وه.

ابن خلدون وايي، چې ددې لپاره د علم او قوت اړتيا نشته، البته ابن خلدون د علومو په ترتيب کې د زراعت ذکر هم کړی دی. څرنګه چې دا د کروندګرو د امدن ذريعه ده، همدارنګه د حکومت د امدن ذريعه هم ده او ابن خلدون وايي، حکومت ته په کار دي، چې د خپلو بزګرانو او دهقانانو حوصله افزايي او کومک ورسره وکړي.

خو، زراعت د زراعت کارو د ذلت سبب هم کيدای شي، دا يې جنګې وړتيا ته زيان رسوي، ابن خلدون دا روايت نقل کړی دی، چې يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم د مدينې د يوه اوسيدونکي سره يوې وليده؛ نو ورته ويې ويل، چې دا د کوم قوم کور ته ورغی، هلته به خامخا ذلت رامنځته شي، هغه ددې حديث تفسير داسې کړی دی، چې بزګر دې په ټيکس ورکولو باندې مجبور کړای شي؛ خو، دا چې دا حديث به څومره صحيح وي، ابن خلدون په دې اړه څه نه دي ويلي.

ابن خلدون په سوداګرۍ باندې ژور بحث نه دی کړی او د ابن خلدون تاريخ هغه په تفصيل سره نه څيري، لکه څنګه، چې مونټيسکو څيړلی دی، ددې وجه داده، چې ابن خلدون د سوداګرۍ د تاريخ نه په درست ډول خبر نه وه، د ابن خلدون په وخت کې په ښارونو کې د سوداګرۍ هماغه پخوانی شکل موجود وه، په نوي دور کې، چې سوداګرۍ څومره پراختيا پيدا کړې ده، په هغه وخت کې يې دومره پراختيا او پرمختګ نه وه کړی، ابن خلدون د سوداګرۍ د شرکتونو نه هم خبر نه وه، لکه څنګه، چې تاريخ وايي، په اسلامي نړۍ کې سوداګريزې ډلې او شرکتونه موجود نه وه او اوس هم په لومړني حالت کې قرار لري.

ابن خلدون بيا هم، دا نظريه وړاندې کړې، چې د سوداګرۍ لومړنی شکل د ضروري سامانونو تبادله وه او په نغدو باندې راکړه ورکړه وروسته رامنځته شوې ده، په اسلامي نړۍ کې د سکو موجوديت موږ ته ددې تاريخ روښانه کوي، ابن خلدون ريښتيا وايي، چې مسلمانانو د سکو رواجول د ايرانيانو او يونانيانو څخه زده کړل او اسلامي هيوادو ته يې راوړې او دا هغه وخت، کله چې په

لومړی هجري پیړۍ کې مسلمانان د یوناني او ایراني تمدنونو سره اشنا شول او په دې وخت کې د نغدو راکړه ورکړه پیل شوه، ابن خلدون وايي، تجارت یوازې ددې لپاره نه دی، چې د ژوند ضرورتونه ترې پوره کړو، بلکه تجارت ددې لپاره هم دی، چې دولت او پیسې پرې وګټو.

په دې وخت کې سوداګري یو فن ګرځي، ابن خلدون د سوداګرو نه د تجارت یو تعریف داسې رانقل کړی دی، چې ( د سوداګرۍ د فن مانا داده، چې یو شی په لږ قیمت واخلي او په زیات قیمت یې وپلورې)، ابن خلدون سوداګرو ته مشوره ورکوي، چې دوی باید ښارونو ته هغه سامان الات راوړي، چې په عام ډول خلک ورته ډیره اړتیا لري او د خلکو لپاره ګټور وي او په کوچینو ښارونو کې هم هغه سامان وپلوري، چې هلته ورته اړتیا ډیره وي، یو پوه سوداګر باید بازار ته وګوري، چې د خپل سامان د خرڅولو لپاره ښه وخت پیدا او انتخاب کړي، هڅې نه چې سوداګر خپل ځان تباه نه کړي.

ابن خلدون وايي، چې سوداګري په دوه ډوله ده، یو هغه ډول سوداګري ده، چې سوداګر یې د هیواد دننه کوي او دویم ډول سوداګري هغه ده، چې سوداګر یې د هیواد دننه کوي، ابن خلدون وايي، سوداګر چې کوم شیان د لیرو هیوادو نه راوړي، د هغو قیمتونه د ښار د قیمتونو نه لوړ وي؛ ځکه، چې سوداګر د سامان اصلي قیمت په خپل سفر باندې مصرفوي او د خپلې خوارۍ او تکلیف لپاره یې هم ګران پلوري، هغه ددې لپاره د سوډان او مراکش مثال ورکوي، کوم مالونه چې د سوډان نه مراکش یا د مراکش نه سوډان ته ځي، دا مالونه نسبت ځايي مالونو او سامان الاتو ته ګران وي.

ابن خلدون او مونتیسکو دواړه په دې نظر دي، چې سوداګري اخلاق خرابوي او هم سوداګري حرص زیاتوي او سوداګر مجبوروي، چې د چل او دهوکې څخه کار واخلي، په داسې حال کې، چې په اکثره ځایونو کې اخلاق او مذهب ددې کار اجازه نه ورکوي، ابن خلدون او مونتیسکو دواړه په دې نظر دي، چې په سوداګرۍ کې باید د نرمو اخلاقو نه کار واخیستل شي.

ابن خلدون احتکار بد ګڼلی دی؛ ځکه، چې دا د سوداګرو او اخیستونکو دواړه لپاره زیان رسوي، هغه د سوداګر په اړه وايي، چې سوداګر ته په دې ګټه کې

هيڅ ګټه او برکت نه وي او دا په مادي ژوند کې په روح باندې يو ناوړه اغيز پريباسي.

د معاش د لاسته راوړلو دريمه سرچينه صنعت دی او ددې څخه مطلب څو مختلف فنون (هنرونه) دي، ځينې يې په کوچې ژوند کې هم ليدل کيږي؛ ځکه، چې هغه ځينې اړتياوې پوره کوي، مثلا، د کاليو (جامو) جوړولو فن (مسلک)؛ خو، ځينې کارونه بيا په متمدن ژوند کې ليدل کيږي، کوم چې د همدې ډول ژوند پايله ده.

څنګه، چې تمدن پرمختګ کوي، نوې، نوې اړتياوې پيداکوي او ددې اړتياوو د پوره کولو لپاره مختلف کارونه رامنځته کيږي، هغه کارونه، چې په ښارونو کې مشهور دي، ابن خلدون هغه يو، يو شميرلي دي او په بشپړ ډول سره يې هغه څيړلي دي، هغه چې کوم شيان څيړلي دي، ځينې يې داسې څيړلي دي، چې د مؤرخينو لپاره ډير ګټور دي؛ خو، د هر يوه تحليلول به لرې ستونزمن وي.

## علوم ـ د فکر د حرکت پايله ده

پروفيسر فلنټ وايي، چې د ابن خلدون د کتاب (مقدمې) په شپږمې برخې باندې بحث نه دی په کار؛ ځکه، چې دا برخه د هغو خلکو لپاره ده، کوم چې د عربي علومو او ادابو سره اشنا وي.

اصلي خبره داده، چې د مقدمې اخري برخې د اسلام د لومړيو څخه د اتمې هجري پيړۍ پورې د عربو د علومو او ادابو يو بشپړ تاريخ وړاندې کوي.

ابن خلدون لومړنی مسلمان دی، چې د مسلمانانو د ادبي او عقلي تحريک تاريخ يې په يوه نوي شکل باندې وليکه، دده څخه مخکې مؤرخينو يوازې هغه موضوعات ليکل، چې د مشهور شخصيتونو يا پيښنو پورې تړل شوي وه.

ابن خلدون د نوي عصر د مؤرخينو د ادابو سره زيات نږديوالی لري؛ بلکه د هغوی څخه مخکې (لومړی) دی.

د مسلمانانو په ادبي تاريخ باندې د ابن خلدون د کتاب (مقدمې) د اخري برخې زيات اغيز پروت دی، که، د کتاب اخري برخه يې نه وه؛ نو، ترکي مؤرخ

حاجي خليفه (۱۶۵۸ز) به خپل جامع کتاب (کشف انطنون فی اسماالکتب والفنون) نه وه ليکلی؛ ځکه دغه کتاب ته په لويديځ او ختيځ کې د يوه جامع کتاب په سترګه کتل کيږي.

ابن خلدون وايي، فکر د علم د حرکت پايله ده، فکر انسان ته د خدای تعالی لخوا يوه تحفه ده، چې انسان پرې د حيوان نه برتري حاصله کړې ده، انسان کولای شي، چې د خپل وروستي حد پورې پراختيا تر لاسه کړي؛ ځکه، ددې د پراختيا اصلي وجه په مسلسل ډول تمرين کول دي.

څرنګه، چې ټولنيز فکر په ښاري او متمدن ژوند کې پوخوالي ته رسيږي، په دې ډول تمدن هم کولای شي، چې لوړو درجو ته ورسيږي.

## ديني او طبيعي علوم

ابن خلدون پورته ذکر شوي علوم په دوه ډولو ويشي، د ديني علومو موخه د عقيدې شرح، د فرائضو تنظيم او د نورو قائمول دي، طبيعي علوم، فلسفي علوم او مابعدالطبيعات د ذاتي شعور او فکر پايله ده.

دغه دواړه علوم د هر يو قوم لپاره اړين دي؛ ځکه هيڅ يو قوم د دين او د انسانيت د فلسفې نه بغير نه شي پاتې کيدای.

په ځينو ځانګړو حالاتو کې ديني علومو مسلمانانو ته ځانګړی اهميت درلودلای دی؛ کوم اهميت چې نورو قومونو نه دی ليدلی، قران او حديث په عربي ژبه دي، په هر مسلمان فرض دي، چې هغه مطالعه کړي، په قران او حديثو کې د مسلمانانو ټول قوانين او د ټولو مسائلو حل موجود دی، په داسې حال کې، چې د نورو قومونو په دينو کې دا ځانګړتيا نشته.

ابن خلدون د هغو علومو په اړه، چې ضروري دي، داسې وايي، علوم بايد لومړی په خپله ژبه کې ولوستل شي؛ ځکه، په پردۍ ژبه باندې لوستل د نيمايي علم لاسته راوړل دي.

هغه بیا وایې، چې په یوه وخت د دوه ډوله علومو یا فنونو (هنرونو) زده کول هیڅ قسمه مهارت نه شي رامنځته کولای (یانې یو فرد نه شي کولای، چې په دواړو کې په یو وخت کې پوره تکړتوب ترلاسه کړي).

کوچنیانو ته باید په لومړي قدم کې اسانه زده کړه ورکړل شي، تر څو په دې سره ورو، ورو ستونزمنو مسائلو ته ورسیږي.

## د تاریخ فلسفه

د ابن خلدون یو ستر کار د تاریخ د فلسفې رامنځته کول دي، دده څخه مخکې تاریخ یوازې د پېښو د بیانولو نوم وه، د پېښو تر منځ کومه اړیکه نه رامنځته کیده، بلکه تاریخ یوازې یو بیاني حیثیت درلوده، د تاریخ په اړه داسې فکر کیده، چې ټولې پېښې اتفاقي(تصادفي) رامنځته کیږي.

ابن خلدون د نورو مؤرخینو نه یو ځانګړی او وتلی شخصیت دی، هغه تاریخ ته د یوې کیسې په نظر نه ګوري، بلکه تاریخ ته د یو ساینس (علم) درجه ورکوي.

هغه وایې، کله چې تاریخ په ژور ډول مطالعه، تجزیه او مشاهده کړو؛ نو، موږ به د غلطیو څخه لیرې پاتې شو او حقائق به لاسته راوړو.

د تاریخ په واسطه موږ د خپلو مشرانو طریقې، د تیرې زمانې اخلاقي حالت، د پیغمبرانو لارښوونې، د حکومتونو سیاست او د هغوی په لارو چارو باندې ښه پوهیدای شو، ددې ګټه به دا شي، چې موږ به د ټولو حقائقو په رڼا کې نیغه او درسته لاره انتخاب کړو.

ابن خلدون وایې، چې موږ د تاریخ څخه هغه وخت درسته ګټه اخیستی شو، چې ځان د ریښتیاوو اساس ته ورسوو.

د اوسنیو شیانو د علت او اسبابو تشریح به وکړای شو او هغه عناصر چې د تاریخي پېښو تر شاه موجود دي، په ژور ډول به یې مطالعه کړو، ابن خلدون د خپل کتاب (کتاب العبر) په لیکلو کې دې ټکي ته متوجه وه، چې هیڅ مؤرخ دده څخه مخکې د تاریخ فلسفي مطالعه نه وه کړې.

هغه د ټولو څخه مخکې د تاریخ د بیروني او داخلي مانا تر منځ توپیر بیان کړی دی، بیروني هیت په ځانګړو ځایونو او حالاتو کې د رامنځته شویو پیښو اړوند مالومات راټولوي، بلکه د تاریخ د داخلي مانا څخه موخه د پیښو پیل، د پیښو علت او په دلائلو باندې څېړنه کول دي، د ابن خلدون دې کار ته باید یو علمي او ساینسي هڅه وویل شي.

د ابن خلدون کتاب (کتاب العبر) د نورو مؤرخینو برعکس د تاریخي پیښو درست نوعیت او او عوامل بیان کړي دي.

د علام په نظر که تاریخي اصول او طریقه له نظره وغورځول شي؛ نو، په تاریخي پیښو کې به غلطۍ رامنځته شي، که چیرته مؤرخ په تاریخي اصولو باندې پوه شي؛ نو، د غلطیو اصلاح کولای شي.

ابن په دې اړه موږ ته دوه بیلګې وړاندې کړي دي، د مؤرخ لپاره په کار دي، چې تاریخ ته باید ځانګړی نظر وکړي، یانې د ټولنې د نوعیت او طبیعت نه باید په بشپړ ډول خبر وي.

د تاریخي پیښو د ثبتولو لپاره په کار دي، چې د پیښو په نوعیت باندې پوره پوه شو او د لاسته راغلو مالوماتو په اساس په بې پرې ډول وڅېړل شي، تر څو هغه مالومات چې درست دي، هغه قبول کړو او پاتې نور پرېږدو، ابن خلدون د تاریخي پیښو د غلطو ثبتولو په عواملو باندې هم خبرې کړي دي، هغه په تدریجي تغیر او تبدیل باندې هم رڼا اچولې ده.

ابن خلدون وایې، چې تاریخ په حقیقت کې د انساني ټولنې په اړه د مالوماتو علم دی، کوم ته چې د نړۍ کلتور (ثقافت) ویل کیږي.

هغه وایې، تاریخ د اصلي پیښو پورې تړلی علم دی، تاریخ د پیښو مثبت یا منفي شکل دی.

دغه پیښې درستې یا غلطې کیدای هم شي، په دې پیښو باندې د تنقید یا تبصرې په جریان کې، څېړنه کول په کار دي، چې ایا دغه پیښې درستې دي که نادرستې.

ابن خلدون وايي، چې تاريخ دوه کومکي علومو ته اړتيا لري، لومړی د کلتور علم ته، د تاريخي پيښو په نوعيت باندې غږيږي، دوم سند يا مأخذ ته اړتيا لري، د سند په واسطه کولای شو، چې تاريخي پيښې ثبت کړو او د تاريخي پيښو په اړه مالومات ترلاسه کړو او د هغوی تجزيه او تحليل وکړای شو.

ستر علام ابن خلدون وايي، که چيرته د ټولو تاريخي دورو مطالعه وکړای شي؛ نو، مالوميږي، چې د ټولو پيښو تر منځ د پرمختګ تاريخي اړيکه شتون لري.

دا يو غلط فکر دی، چې څوک ووايې، مختلفې تاريخي دورې يو د بل نه جلا دي.

څکه، تاريخي پيښې په مسلسل ډول يو د بل سره اړيکې لري.

علام ابن خلدون وايي، چې تېر، حال او راتلونکی يو ډول مثلث دی، که يوه زوايه ترې ليرې کړو؛ نو، هندسي شکل خپل اهميت له لاسه ورکوي.

هغه د ټولنې د پرمختګ مطالعه کړې او تېر يې د حال سره مشابه ګرځولی دی.

## خلافت

ابن خلدون وايي، د دين ساتنه، پراختيا او دنياوي سياست او د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نيابت کول خلافت او امامت دی او ځای ناستي ته خليفه يا امام ويل کيږي، لکه څرنګه چې امام د مانځه او وخت تقليد او پيروي کوي، دې ته امامت کبری (ستر امامت) ويل کيږي او خليفه ورته ځکه ويل کيږي، چې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم په امت کې د نائب او خليفه رول اداء کوي، دې شخص ته کله خليفه يا خليفة الرسول هم ويل کيږي، ځينې علماء د خدای تعالی خليفه هم ورته وايي؛ خو، ډيری علماوو دا خبره نه ده خوښه کړې؛ ځکه، چې ابوبکر صديق (رض) د خليفة الله نوم نه وه خوښ کړی، بلکه د خليفة الرسول نوم يې ښه ګڼلی وه، ابن خلدون ددې لپاره دا دليل وړاندې کړی دی، چې

خدای تعالی هر وخت حاضر او ناظر دی؛ نو، ځکه د هغه د خلافت او نیابت سوال نه پیداکیږي.

## د خلافت وجوب

ابن خلدون لیکلي دي، چې د خلافت واجبیدل د صحابه او تابعینو نه ثابت دي، په دې ډول د خلیفه یا امام ټاکل لازمي او ضروري دي، همدا وجه وه، چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د وفات نه وروسته صحابه کرام حضرت ابوبکر (رض) د لومړی خلیفه په توګه وټاکه، ددې وروسته بیا اسلامي نړۍ کې داسې حالت رانه غی، چې خلیفه دې موجود نه وي، د شریعت اصلي موخه د انسان ساتنه، د فساد او ظلم مخنیوی کول دي.

څو معتزله ډلې او ځینې مؤرخین په دې نظر دي، چې د خلیفه یا امام ټاکل د عقل له نظره ضروري او واجب نه دي، دوی فکر کوي، چې د شریعت د تطبیق لپاره د امت موجودیت مهم دی، که چیرته ټول خلک د شرعي احکامو مطابق ژوند تېر کړي؛ نو د امامت یا خلافت ضرورت بیا نشته، ابن خلدون وایې، کله، چې ثابته شوه، چې ټولو اجماع کړې ده او د امام ټاکل واجب دي؛ نو، دا به د فرضې کفایې حیثیت لري.

## د امام یا خلیفه ټاکل

ابن خلدون د امام د ټاکلو حق عوامو ته نه ورکوي، بلکه اهل حل او عقد ته یې سپاري او وایې، چې اهل حل او عقد هر څوک خلیفه وټاکه، عوام یې باید اطاعت وکړي؛ ځکه، د خدای تعالی وینا ده، چې تاسو د الله اطاعت وکړئ، د هغه د رسول اطاعت وکړئ او د هغه چا اطاعت وکړئ، چې په تاسو حاکمان دي.

## د امامت یا خلافت شرائط

ابن خلدون هم د الماوردي په شان د خلافت لپاره ځینې شرائط وړاندې کړي دي، چې په لاندې ډول ترې یاونه کوو.

۱- علم ـ خلیفه باید په شرعي احکامو باندې پوه وي او باید چې اجتهادي درجې ته هم رسیدلی وي، تر څو د شرعي احکامو په رڼا کې د مسائلو حل راوباسي او چاته یې د رجوع کولو اړتیا پیښه نه شي او خلیفه باید په هر لحاظ د کمال درجې ته رسیدلی وي.

۲- عدالت ـ امامت یو دیني منصب دی او داسې یوه چوکۍ ده، چې عدالت په کې ضروري دی، خلیفه باید داسې یو کار ونکړي، چې د هغه شخصیت ته پرې صدمه ورسیږي.

۳- کفالت ـ امام باید د شرعي حدودو د پلي کولو اهلیت ولري، په جهاد او جګړه کې باید د لارښوونې وړتیا ولري، په خلیفه کې باید دومره لیاقت موجود وي، چې نور خلک جګړې ته چمتو کړي، شرعي حدود نافذ کړي، د سیاست سره اشنا وي، تر څو د دین او دنیا ساتنه وکړي او د هیواد بشپړتیا ته کوم خطر پیښ نه شي.

۴- د حواسو او اعضاوو روغوالی ـ د امام ټول حواس او اعضاء باید جوړ وي، تر څو خپله دنده په درست ډول سرته ورسوي، د بیلګې په ډول هغه لیونی نه وي، ګونګ نه وي، ګوډ، شل او شوټ نه وي، که د امام په جسم کې کوم نقص پیدا شو، چې هغه نه شو کولای، خپله وظیفه په درست ډول سرته ورسوي؛ نو، د هغه امامت باید مقید نه وي.

۵- قریشي نسب ـ په دې شرط کې اختلاف موجود دی، د قاضي ابوبکر باقلاني قول دی، چې د خلیفه لپاره دا کوم ضروري شرط نه دی؛ خو، په سقیفه کې په دې مسئلې باندې اجماع شوې؛ ځکه، کله چې انصارو د سعد بن عباده سره بیعت کول غوښتل؛ نو، قریشو د پیغمبر علیه السلام په دې قول باندې، چې ( خلیفه یاامام باید قریش وي) دلیل ونیوه او انصارو هغه (ابوبکر رض) د خلیفه په توګه قبول کړ.

دغه شرط هغه وخت د منلو وړ وه، کله چې په عربي قبائلو کې قریشو ته شرف حاصل وه او خلکو د قریشو مشري منلې وه؛ ځکه، هغوی قومي عصبیت درلوده او دا عصبیت د خلافت د قوي کولو او د احکامو د پلي کولو لپاره ډیر

ضروري وه، په دې ډول هغه د هغه وخت مصلحت وه، اصلي شرط کفايت (وړتيا) ده؛ ځکه، همدا د حکومت د استحکام او امنيت لپاره مهم دی، د سلطنت د پراختيا سره قريشي عصبيت له منځه ولاړ، بيا دا خبره رامنځته شوه، چې خلافت بايد داسې يو غير قريشي ته ورکړل شي، چې شاته قوي عصبيت ولري، تر څو خلافت په درست ډول اداره کړای شي، کله چې قاضي ابوبکر باقلاني د قريشيت د شرط نه انکار وکړ؛ نو، په هغه وخت کې په عربو باندې عجمي خلفاء غالب شوي وه او عربي عصبيت کمزوری شوی وه.

## ولي عهد ټاکل

ابن خلدون خليفه د امت ولي او امين هم بولي، ابن خلدون خليفه ته د ځان نه وروسته د ځای ناستي د ټاکلو حق هم ورکړی دی، امت به په ولي عهد (ځای ناستي) باندې داسې اعتماد کوي، لکه څرنګه چې يې په خليفه باندې کړی وي، په شريعت کې د امت په اجماع سره دا خبره ثابته ده، چې خليفه د ځانه وروسته ځای ناستی ټاکلی شي؛ ځکه، حضرت ابوبکر (رض) د صحابه وو په مجمع کې حضرت عمر (رض) خپل ځای ناستی مقرر کړی وه، حضرت عمر (رض) د خپل ځای ناستي توب مسئله شپږو عشره مبشروو صحابه وو ته سپارلې وه، هغوی ته يې واک ورکړی وه، چې امام وټاکي، په دې وخت کې هغوی خليفه په ديني لحاظ سره وټاکه، اوس که چيرې کوم خليفه خپل زوی يا ورور خپل ځای ناستی وټاکي؛ نو، بايد بد ګماني پرې ونه کړل شي، امير معاويه (رض) خپل زوی يزيد د کورني عصبيت په وجه خليفه ټاکلی وه، که هغه دا کار نه وه کړی؛ نو، کورني عصبيت مشکلات پيداکول.

## د دوه خلافتونو موجوديت

ټول مسلمان مفکرين په دې خبره باندې متفق دي، چې په اسلامي نړۍ په يوه وخت کې بايد يو خليفه موجود وي، که دويم شخص د خلافت دعوی وکړي؛ نو، هغه باغي او واجب القتل دی؛ خو، ابن خلدون لومړنی مفکر دی، چې د اسلامي نړۍ پراخوالي او تنظيم چارو ته په کتو سره يې د دوه خلافتونو (يا خليفه ګانو) موجوديت يې روا ګرځولی دی، لکه څرنګه چې عباسي خلافت عرب او ځينې

مرکزي سیمې اداره کولې؛ خو، په مقابل کې یې په هسپانیه کې د بنو امیه سلطنت هم موجود وه، د خلافت اساسي دنده په خپلو حدودو کې بشپړ امنیت، سوله او انصاف حاکمول دي، که چیرته یو خلیفه د خپل سلطنت په حدودو کې خپله دنده په درست ډول سرته نه شي رسولای؛ نو، دویم خلیفه حق لري، چې د امن او سولې لپاره کار وکړي.

## یو نمونه یې حکومت

ابن خلدون د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د خلفای راشدینو مبارک دور د حکومت کولو یوه بیلګه ګڼي او د پیغمبر علیه السلام او د خلفای راشدینو خلافت یو ځانګړی او جلا حکومت ګڼي. (یانې د نړۍ لپاره یې د حکومت یوه نمونه ګڼي). ځکه په دې وخت کې د حکومت کولو ټول اهداف پوره شوي وه، د هیچا سره بې انصافي ونه شوه، د خلکو د ژوند ټولې اړتیاوې پوره شوې وې، د خدای تعالی ټول اوامر په درست ډول پلي شوي وه، واکمنو په خپلو مخلصانه کوښښونو سره د خلکو ټولې دنیاوې اړتیاوې او اخروي غوښتنې پوره کړې وې، ددې بیلګه تر اوسه پورې د بشریت په تاریخ کې نه ده وړاندې شوې، د هغوی د وخت حکومت داسې یوه نمونه ده، که انسان پرې عمل وکړي؛ نو، داسې ټولنه به رامنځته شي، چې ټولې اړتیاوې به یې په اسانۍ سره پوره شي، د نفرت، کینې او حسد ټولې وریځې به له منځه ولاړې شي، د یو بل سره به د ورور ولۍ او مینې جذبې پیداشي، انسان به د انسانیت لوړ مقام ته ورسیږي، امیر معاویه (رض) غوښتل، چې ټول اختیارات او د خلافت د ټولې پراختیا واک په خپل لاس کې واخلي، تر څو د هغه څخه پخوا رامنځته شوی قوي خلافت یې له لاسه ونه وځي، د قوي قوت په موجودیت سره امیر معاویه (رض) د خلافت طرف بدل کړ او خپل زوی یزید یې خلیفه وټاکه، چې په دې کار سره د بنو امیه وو په اهل حل و عقد کې اختلافات رامنځته شول.

ابن خلدون د خلافت نه ملوکیت ته د سفر تشریح کړېده او هغه یې سیاسي مصلحت بللی دی او ددې لپاره یې پر عصبیت باندې زور اچولی دی، په داسې حال کې، چې عصبیت یوازې د ایمان او مذهبي اعتقاداتو له لارې سرایت کوي، د ابن خلدون په نظر د شریعت پر ځای عصبیت خلافت ساتلی دی، په هغه وخت

کې خلافت یوازې د یو سیوري په شکل باندې پاتې شوی وه، ابن خلدون د خلفای راشدینو حکومت د یوې نمونې په توګه وړاندې کوي، هغه په اوسنیو سلطنتونو (اوسنیو واکمنو) باندې تاکید کوي، چې د هغو اخلاقو خیال دې وساتي، کوم چې د یوه شرعي حکومت لپاره اړین دي.

## د قانون تصور

ابن خلدون وایې، چې د انسانانو د یوې ډلې لپاره د قانون موجودیت ډیر اړین دی، تر څو د هغه لاندې انساني چارې اصلاح شي او د قانون پلي کول د حاکم دنده ده، دغه قانون شرعي قانون هم کیدای شي، چې په پلي کولو سره یې انسان ته ثواب ورکول کیږي او هغه انسان چې ددې قانون پر ضد عمل کوي، هغه ګناهګار دی او د سزا مستحق دی، په قوانینو کې باید د عام او خاصو دواړو خیال وساتل شي او په دې کې ټول احکام شامل دي، مسلمانانو ته د ځانګړي قانون جوړولو اړتیا نشته، ابن خلدون د طاهر بن الحسین د هغه لیک حواله ورکوي، کوم چې یې خپل زوی عبدالله بن طاهر ته لیکلی دی، دغه شخص خلیفه مامون الرشید واکمن مقرر کړی وه، په دې لیک کې طاهر خپل زوی ته د شریعت د احکامو د پلي کولو لارښوونه کوي، ورته وایې، په قران کریم کې چې د کومو حلالو او حرامو ذکر شوی دی، دهغه څخه باید هیڅ انحراف ونه کړي، نبوي حدیث باید له یاده ونه باسي، د خدای تعالی د رضا لپاره باید قران کریم تلاوت کړي؛ ځکه، چې ستا نه پوښتنه کیږي، خپله دنده په ایماندارۍ سره سرته رسوه، د پیغمبر علیه السلام سنت خپل شعار وګرځوه، د ژمنې پابندي کوه او د دروغجنو او چغل خورو خلکو نه ځان ساته.

ابن خلدون د امت په فقهي مکتبونو حنفي، شافعي، مالکي او حنبلي باندې خبرې کړي دي، د شیعه ګانو فقه چې په جعفریه فقه باندې استواره ده، دا ټول د قران او سنتو په رڼا کې وضع شوي دي.

ابن خلدون لیکلي، چې قانون د انسانانو لخوا هم جوړیدای شي، البته دغه قانون د انسانانو د مادي خوشالۍ لپاره جوړیږي، ددې قانون له مخې زیاتره دنیاوي ګټې په نظر کې نیول کیږي، ابن خلدون د عوامو غوندې واکمن هم مجبور کړي، چې قانون باید مراعت کړي.

ابن خلدون ليکلي، چې د مسلمانانو زياتره خلک د پنځو فقهي مدرسو پورې تړلي دي؛ نو، بايد قانون د هغه ځای د خلکو مطابق جوړ کړل شي او د قوانينو مأخذ بايد فقهي مدرسې وي.

## د حکومت داخلي نظام

ابن خلدون ليکي، چې د پاچا په اوږو باندې ډير ستر بوج پروت وي او دا د پاچا ذمه واري ده، چې د خدای تعالی د مخلوق ساتنه بايد د دښمنانو څخه وکړي، منصفانه احکام بايد پلي کړي، يو بل بايد ظلم او زياتوالي څخه وساتي، د خلکو مالونه بايد د نورو د لاسو څخه وساتي او د هغوی تر منځ بايد انصاف رامنځته کړي، د خلکو د اقتصادي، ټولنيزو او مذهبي کارونو څارنه بايد وکړي او داسې ستونزه رامنځته نه کړي، چې د هغوی په کارونو کې خنډ واقع شي او په تکليف يې کړي، دې موخې ته د رسيدو لپاره پاچا پوهو او لائقو اشخاصو ته اړتيا لري، که کومک کوونکی د هغه خپل (رشته دار) يا کوم پخوانی حکومتي شخص وي؛ نو، دا د پاچا سره ډيره مرسته کوي.

پاچا د خلکو مرستې ته اړتيا لري، کله، توري، کله قلم او کله هم رايې ته اړتيا لري، پاچا په ځانګړي توګه هغو خلکو ته ډيره اړتيا لري، چې په حکومتي کارونو کې د هغه لاس نيوی وکړي او دا اشخاص بايد باوري اشخاص وي، کله، داسې وي، چې يو شخص د زياتو کارونو وړتيا لري او کله د نورو خلکو نه مرسته غواړي.

ابن خلدون وايي، چې په سلطنت (حکومت) کې څلور دندې ډيرې مهمې دي او په دې څلورو کې تر ټولو مهمه دنده د وزير دنده وي، هغه د سلطنت ټول بار په خپلو اوږو باندې اخلي، دويمه مهمه دنده د کاتب ده، چې واليانو ته ليکونه او مراسلات ليږي، والي په يوه يا زياتو ولايتونو باندې مقرريږي، دغه والي د خپل ولايت مشر وي او د ټولو ولايتي چارو مشري کوي، خليفه يا واکمن هغه له دندې ګوښه کولای هم شي، والي په خپل ولايت کې هغه ذمه واري لري، کومه چې واکمن يې لري، دغه واليان د مرکزي حکومت د فرمانونو مطابق د ولايت چارې سمبالوي.

دریمه دنده د مالیې د وزیر (صاحب المال و الجیا) دنده ده، دغه شخص د خراج د راټلو او مصارفو معاملات سرته رسوي او ریکارډ یې د ځان سره ساتي، څلورمه مهمه دنده د حاجب دنده ده، دغه شخص د پاچا د زړه د ارام لپاره کار کوي.

دغه پورته ذکر شوې څلور دندې د نورو نه ډیرې لوړې دي او په دوی کې د وزیر دنده یې له ټولو مهمه ده؛ ځکه، دغه شخص د پاچا د لاس لاندې ټولو کسانو څارنه کوي، د پاچا ملګری او همراز وي او په دولتي چارو کې شریک وي، سربیره پر دې نورې دندې هم شته، مثلا د سرحد لپاره ځانګړی شخص ټاکل، د خراج لپاره، د خوراک او څښاک لپاره، د ټیکس او سکو لپاره ځینې مهم اشخاص ټاکل او نور...، دغه اشخاص د نورو اشخاصو د لاس لاندې کار کوي، چې د هغوی په پرتله دغه کوچنی دندې دي.

ابن خلدون خلیفه ته وایي، چې د دین د اقامې لپاره باید مفتي، مدرس، امام، خطیب او مؤذن وټاکي، د انصاف د پلي کولو لپاره باید قاضیان وټاکي، محکمې باید جوړې کړي او هغوی (قاضیانو) ته باید معقولې تنخواګانې ورکړي؛ ځکه، اکثره یې مالداره نه وي، خلیفه په دې کار سره کولای شي، چې عوام خوشاله کړي او د خلافت د موجودیت اساسي موخه هم همدا ده، د دین په سیاسي قوت کې زیاتوالی راځي؛ ځکه، مذهبي جذبه خلک نفرت او کرکې ته مجبوروي او بیا ددې خلکو مقابله هیڅ قوم نه شي کولای او هغه حکومتونه چې د دین نه محروم دي، که په شمیر کې زیات هم وي؛ نو، دواړه سره نه برابرېږي. ابن خلدون د کاتب د دندې یادونه کړې او ویلي یې دي، چې په حکومت کې کوچني کوچني سیمه ایز حکومتونه موجود وي، چې مشري یې والي کوي، والي مرکزي حکومت ته جوابده وي، هغه لیکي، د حکومت مشر ته په کار دي، چې دا کسان باید په دنده باندې وګماري، چې د هغه ځای د حالات په اړه ورته مالومات ورکړي، د هغه ځای د خلکو سره ښه سلوک وکړي او په ښه ډول سره خپله دنده سرته رسوي.

ابن خلدون د مهمو کلیدي وظیفو لکه فوځي او مذهبي وظیفو په اړه په تفصیل سره خبرې کړې دي، هغه د حکومت د ژبې په اړه لیکلي، چې د اسلامي

حکومت د مخلتفو شعبو او د اسلامي نړۍ د يو بل سره د اړيکو ساتلو لپاره بايد يوه ژبه موجوده وي او هغه ژبه بايد عربي وي او دا مشوره يې هم ورکړې ده، چې د نورو سيمه ايزو ژبو د پرمختګ لپاره هم بايد کار وکړل شي.

## اقتصادي مسائل

خدای تعالی انسان خپل خليفه ټاکلی دی او د نړۍ ټول شيان يې د هغه په واک کې ورکړي دي، يوازې يو شخص بايد هغه په خپل تصرف کې رانه ولي، بلکه په ټولنيز ډول ټول خلک بايد ترې ګټه واخلي او ټول يې حقدار دي، ارسطو هم ورته نظر لري؛ خو، کله چې يو شی د يوه شخص په قبضه کې راشي، بل شخص يې بې اجازې نه شي اخيستلای، ځينې هغه شيان وړيا دي، لکه د باران اوبه، چې د پټيو او نورو اړتياوو لپاره استعماليږي؛ خو، يوازې اوبه د انسان لپاره مهمې نه دي.

ابن خلدون د رزق د لاسته راوړلو څو مختلفې طريقې ذکر کړي دي، لومړی پاچا د محصول او خراج له لارې رزق تر لاسه کوي، دويم ښکاري د ښکار له لارې، دريم، ځينې خلک د ځينو نورو حيواناتو له لارې شيدې ترلاسه کوي، وريښمين لاسته راوړي او د شاتو مچيو نه شات لاسته راوړي او خپل رزق ځان ته برابروي. څلورم لاره يې د کروندې او د ونو څخه د ميوو لاسته راوړل دي، پنځمه لاره يې صنعت او فن دی او شپږمه لاره يې سوداګري او ډيری خلک د ملازمت له لارې خپل رزق لاسته راوړي.

د کارل مارکس نه ډير مخکې ابن خلدون د انسان خواري د اجورې د لاسته راوړلو يوه لاره ښودلې ده؛ ځکه، هغه د شيانو د لاسته راوړلو لپاره خپل خواري کوي او په قيمت کې يې زياتوالی راولي، يانې د عمل او خوارۍ نه ګټه ترلاسه کوي.

ابن خلدون د سوداګرۍ، ګټې او زيان، اجاره دارۍ او د جګړې په وخت کې د شيانو په ناقانونه ډول ساتلو باندې خبرې کړي دي، دا يې ويلي دي، چې سياست د اقتصاد سره ژوره اړيکه لري، که د پاچا خزانه ډکه وي او د عوامو د فلاح او بهبود لپاره يې نه مصرفوي؛ نو، په دې وخت کې پاچا په عوامو باندې ظلم کوي،

هغه پاچا ته مشوره ورکړې ده، چې د مصارفو او امدن لپاره باید یو متوازنه لاره وټاکي، د قیمتی مخه دې ونیسي او د دولت حاکمیت باید څو کسانو ته پرینږدي، که د پاچا خزانه ډکه وي او د عوامو د فلاح او بهبود لپاره کار کوي؛ نو، عوام خلک به د هغه سره مینه او محبت وکړي، زړه له کومې او په ځان سره به يې اطاعت وکړي، که خزانه خالي وي او عوام د غربت او افلاس ښکار شي؛ نو، د پاچا دښمنان به شي، محصول دی، چې حکومت چلوي، پاچا ته په کار دي، چې په منصفانه ډول محصول ولګوي.

واکمن باید د خلکو نه د زیاتې خوارۍ غوښتنه ونکړي؛ ځکه دا غوښتنه او خواري د هغوی جسماني صحت ته زیان رسوي.

ابن خلدون وايي، چې په کلیو کې کروندې او غله جات د رزق د لاسته راوړلو لاره ده؛ خو، په ښار کې د رزق د لاسته راوړلو لارې چارې ډیرې دي، مثلا صنعت او فن، سوداګري او ملازمت او نور... سوداګرو ته مشوره ورکوي، چې په سوداګرۍ کې سستي ونکړي، بلکه په ایمانداریّ سره سوداګري وکړي، که داسې ونکړي؛ نو، بد اخلاقه به ورته وویل شي، هغوی باید قیمتي رامنځته نه کړي.

ابن خلدون شخصي جائداد قائل ته دی؛ خو، د حکومتي مشرۍ ضد دی، ابن خلدون د حکومت په خوشالۍ او ساتنه، امن او سوله او ابادۍ باندې زیات تاکید کړی دی؛ ځکه، هغه وايي، چې د قوي اقتصاد نه بغیر د حکومت پښې سستې وي.

## د ماحول نظریه

د ابن خلدون د ماحول نظریه ډیره مهمه ده، د هغه په نظر د انسان په دماغي او جسماني پرمختګ باندې جغرافیایي حالات ژور تاثیرات لري، معتدلو سیمو کې تمدن او تهذیب ډیر پرمختګ کوي او ددې سیمو خلک په هر لحاظ د معتدل مزاج لرونکي وي، په دې ځآیو کې پیغمبران مبعوث شوي دي؛ ځکه، ددې سیمو خلک په جسمي او ذهني لحاظ بشپړ او د عاداتو په لحاظ متوازن دي، دغه سیمې د طبیعي سرچینو څخه ډکې دي، سرې او سپینې سکې استعمالوي، د هغو اقلیم

چې معتدل نه وي، د هغه ځای تمدن معمولي وي، د هغه ځای لباس، غذا او د اوسیدو ځآیونه دټیټې درجې وي، تور پوستي خلک د ونو په جونپړو کې اوسیږي، موسم او هوا د انسان په خلاقو، خیالاتو او عاداتو باندې ژور اغیز لري، دا ضروري نه ده، چې د معتدلو سیمو ټول ځایونه دې سرسبز وي، چیرته ډیرې غلې وي او چیرته بیخي نه موندل کیږي، د شنو ځایونو خلک خوشاله او فارغه ژوند تیروي، ددې سیمو خلک ځکه په جسماني او ذهني لحاظ دومره قوي نه وي، د دښتو، میدانونو، صحراوو او غرونو خلک د سخت ژوند تیرولو عادي وي؛ ځکه، نو ددغه سیمو خلک زیات ذهین وي، د غذا زیاتوالی یوازې انسان نه بلکه حیوان هم اغیزمن کوي، په هغو سیمو کې چې لمر ډیر نږدې وي، د هغه ځای د خلکو رنګ زیات تور وي او په هغه سیمو کې چې لمر ډیر تېز وي، دهغه ځای خلک غم رنګ او سپین وي.

په هر حال ابن خلدون ددې نظریې په اساس د مختلفو سیمو په حکومتونو باندې رڼا اچولې او د هغوی توپیرونه یې څیړلي دي، اروپایي مفکرینو بودان او مونټیسکو هم د جغرافیایي اقلیم په نظر کې نیولو سره په انساني اخلاقو او د هغوی په سیاسي، اقتصادي ادارو باندې غږیدلي دي، ارسطو د خپل وخت د یونانیانو تعریف کړی دی، د فلسفې پراختیا او پرمختګ یوازې د جغرافیایي حالاتو پورې تړلی دی او ددې څخه د اروپا نورې سیمې محرومې دي، مونتیسکو د شمالي اروپا خلکو ته په کتو سره، د یخو سیمو خلک بااستعداده، چست، خواري کښ او ازادی خوښي خلک معرفي کړي دي او ویلي یې دي، چې د ګرمو سیمو خلک سست، کمزوري او د غلامۍ خوښوونکي خلک دي، په داسې حال کې چې د همدې شمال خلک لومړی په وحشت او تیارو کې ډوب وه.

## د زده کړې فلسفه

ابن خلدون د زده کړې په اړه هم نظریه وړاندې کړې ده، د هغه په نظر زده کړه د هر شخص طبیعي حق دی، دده نه مخکې هیڅ فیلسوف علم او فن د خلکو طبیعي حق نه وه پیژندلی، ابن خلدون په ښکاره الفاظو سره دا خبره کړې، چې د علم او فن زده کړه د شخص فطري غوښتنه ده، د علم د فضلیت په باره کې هر وخت خلکو نظریات ورکړي دي؛ خو، د علم لاسته راوړل د بشري غوښتنې په

حیث او په فلسفي دلائلو باندې د هغې ثابتول په لومړي ځل ابن خلدون وړاندې کړل، ابن خلدون د خپل وخت د تعلیمي نظام نه خوښ نه وه، هغه یې د ښه کولو لپاره فکر وکړ او نظریات یې وړاندې کړل، ابن خلدون د خپل وخت د مفکر قاضي ابوبکر ابن عربي نه زیات اغیزمن ښکاري او د هغه د اصولو ستاینه کوي، د ابن خلدون په تعلیمي نظریاتو کې د ابن عربي افکار ښکاري.

## د علم تصور

د ابن خلدون په نظر اصلي او حقیقي علم د معرفت علم دی او معرفت (پیژندنه) انسان ته حقیقت روښانه کوي؛ خو، هر شخص د معرفت علم نه شي ترلاسه کولای او نه هر شخص په کې دلچسپي لري، بډای خلک د دنیاوي او مادي علومو طرف ته کوښښ کوي؛ خو، د حقیقت په پیژندنه (معرفت) کې ابن خلدون وجدان او الهام ته قائل دی او هغه ته یې د شپږم حس نوم ورکړی دی، کوم چې هر شخص نه شي کولای لاسته یې راوړي، بلکه د الله تعالی ورکړه ده او ځینو، ځینو اشخاصو ته ورکول کیږي، هغه خلکو ته چې دا علم ورکړل شوی، هغه پیغمبران دي، په دې لحاظ یوازې پغمبران د حقیقي علم سره اشنا وي، د عامو خلکو عقل محدود او سطحي وي؛ ځکه، نو ضروري ده، چې خلک د پیغمبرانو په تعلیماتو باندې عمل وکړي، تر څو نجات ومومي.

## د علومو ډولونه

ابن خلدون ټول علوم په دوه ډولو ویشلي دي.

۱- طبیعي علوم ۲- نقلي علوم

۱- طبیعي علوم

دا داسې علوم دي، چې په هغې باندې د پوهیدو لپاره انسان د خپل فکر نه کار اخلي، په خپلو عقلي قواوو سره موضوعات، مسائل او دلائل حاصلوي، د خپلو ذهني قوتونو نه کار اخلي، په دغو علومو کې مهارت ترلاسه کوي او په هر څه کې تمیز حاصلوي.

په طبيعي علومو کې منطق، طبعيات، طب و خلافت، الهيات، سحر، جادوګري، هندسه، موسيقي او نور شامل دي.

۲- نقلي علوم

ددې څخه هدف داسې علوم دي، چې په کومه واضحه وسيله انسان ته حاصليږي، ددې دار و مدار په نقل او رواياتو باندې دی، انساني عقل په کې کوم رول نه لري، د نقلي علومو سرچينه د خدای تعالی کتاب (قران کريم) او د رسول الله صلی الله عليه وسلم سنت دي، کوم چې زموږ شريعت دی او زموږ دين ترې منځته راغلی دی، په نقلي علومو کې تفسير، قرات، حديث، فقه، لغت، بيان، نحو، اداب، تصوف او د خوبونو تعبير شامل دي.

## د علم ذريعې

د ابن خلدون له نظره علم د دوه لارو څخه ترلاسه کيدای شي، ۱- ظاهري حواس ۲- باطني حواس.

۱- ظاهري حواس: د ظاهري حواسو څخه هدف غوږ، سترګه، پوزه، ژبه او جلد دی.

۲- باطني حواس: د باطني حواسو څخه هدف مشترک حس، تخيل، وهم، حافظه، غور او فکر دي، ددې څخه د مجردو تصوراتو علم ترلاسه کيږي.

ابن خلدون حواس خمسه (پنځو حواسو) څخه د علم زده کول ضروري ګڼلي دي؛ ځکه، ټول دنياوي او مادي علوم ددې پنځو حواسو څخه ترلاسه کيږي؛ خو، ابن خلدون دغه پنځه حواسه د علم د لاسته راوړلو د يقيني ذريعي په توګه نه مني، هغه وايي، چې ددې حواسو په واسطه تر لاسه شوی علم د معرفت علم نه دی، هغه حقيقي معرفت لپاره ذريعه الهي وحي ګڼي.

## د زده کړې موخې

د ابن خلدون له نظره د زده کړې موخې د ټولنې د موخو تابع وي، هغه د زده کړې موخې په لاندې ډول بيانوي.

۱- د داسې کسانو روزل، چې ژوند په ښه ډول تیر کړي.

۲- د نویو پیداشویو او بالغانو کلتوري خلاء ډکول.

۳- فرد ته په درست ډول د فکر کولو عادت ورکول، تر څو ټولنیز مسائل په صحیح ډول حل کړي.

۴- زده کوونکو ته د قواعدو او ضوابطو مطابق د ژوند تیرولو تربیت ورکول.

۵- په زده کوونکو کې تمدني خصوصیات رامنځته کول، تر څو ټولنه په صحیحو لیکو باندې روانه کړي.

۶- د مسلمان د زده کړې اصلي موخه د الهي معرفت پیژندل دي، کوم چې د پیغمبرانو د پیروی نه ترلاسه کیږي.

## په تعلیمي نصاب باندې نیوکه

د ابن خلدون په وخت کې په تعلیمي نصاب کې زیاتې نیمګړتیاوې موجودې وې، هغه د تعلیمي نصاب نه مطمن نه وه، هغه خپله ټوله توجه تعلیمي نصاب ته واړوله، ابن خلدون د خپل وخت مفکر قاضي ابوبکر ابن عربي نه زیات اغیزمن ښکاري، قاضي ابوبکر د زده کړې په طریقه باندې نیوکه کړې، هغه ویل، چې د ماشومانو د زده کړې پیل باید د قران کریم نه وشي، هغه ویل، چې د قران کریم ژبه د فصاحت، بلاغت له نظره د یو زده کوونکي لپاره ډیره اړینه ده، هغه ویل، چې په حساب او د مورنۍ ژبې په زده کړه باندې هم تاکید کړی دی، د هغه له نظره د حساب په زده کولو سره د ماشومانو فکري قوت زیاتیږي، په دې سره ماشومان د استدلال طریقې زده کوي.

ابن خلدون ځینې لاندې نیمګړتیاوې هم ذکر کړي دي.

۱- د تألیفاتو زیاتوالی

د ابن خلدون په وخت کې د تعلیمي نصاب یوه ستره نیمګړتیا دا وه، چې د علم په یوه، یوه څانګه او یو، یو فن په یوه اړخ باندې زیات کتابونه ولیکل شول او ټول یې په نصاب کې داخل کړي وه او تر څو پورې چې کوم زده کوونکی هغه ټول کتابونه زده نه کړي، د هغه وخت پورې د فضلیت دستار نه ورکول کیده، هغو کتابونو د شرحو حیثیت درلوده، د یوه کتاب څو شرحې لیکل شوې وې، په داسې حال کې، چې په دې سره د شاګردانو په ذهن کې انتشار پیداکیده.

ابن خلدون ویلي دي:

د ټولو عبارتونو مطلب یو دی، زده کوونکي مجبوریږي، چې ټول عبارتونه یاد کړي، ابن خلدون وایې، چې په یوه فن کې د زیاتو شرحه شویو کتابونو لیکل، ځکه ښه کار نه دی، چې د ټولو کتابونو مطلب یو دی.

۲- د تألیفاتو اختصار

د ابن خلدون له نظره د تألیفاتو اخصتار د زده کړې مانع ګرځي، په هغه وخت کې ځینې داسې علماو وه، چې کوښښ یې کاوه، دریا په کوزه کې بنده کړي.

د ابن خلدون پر ضد دا غږ پورته کیده، چې ابن خلدون وایې، هغه څه چې په تفصیل سره زده کیږي، هغه په مختصر ډول نه شي زده کیدای، داسې لیکوالانو بلاغت لیرې غورځولی دی او زده کوونکي یې په یوه مصیبت کې اچولي دي، په دې سره په زده کوونکو کې علمیت نه شي پیداکیدای، بلکه زده کړه یې سطحي وي، ابن خلدون د تألیفاتو اختصار نه خوښاوه؛ ځکه، چې نصاب داسې یوه لاره ده، چې د هغې پواسطه د ژوند ټول حالات زده کیدای شي.

۳- تدریسي اصول

ابن خلدون د استادانو په هلکه وایې، چې هغوی د تدریس په وخت کې د اسان نه مشکل خواته د تګ اصول په پام کې نه نیسي، اکثره استادان په لومړیو کې په سختو او پیچلو مسائلو باندې بحث پیلوي، په دې سره د زده کوونکو په سبق یادولو کې مشکل پیښیږي او تدریس د هغوی لپاره بې مانا وي او نه شي کولای، چې د تدریس نه ښه استفاده تر لاسه کړي او ځینې وخت زده کوونکی د فرار او تیښتې لاره خپلوي

۴- د ارتباط اصول

د ابن خلدون له نظره استادان د ژبې او ادب په تدریس کې د ارتباط اصول په نظر کې نه نیسي، استادان داسې چاپیریال پیداکوي، چې درس د زده کوونکو د ذهن نه لوړ وي او په درس کې دلچسپي اخیستلو نه ځان ساتي.

استادان په دې سره د زده کوونکو د ذهني صلاحیتو د له منځه وړلو کوښښ کوي او په دې ډول هغوی د درس د جزیاتو نه محرومیږي.

۵- درجه بندي

په تعلیمي نصاب کې د مضامینو ترتیب نه نیول کیږي، ابن خلدون په تعلیمي نصاب د درجه بندی غوښتونکی وه، د لومړنیو او وروستنیو مسائلو په غلطلو سره تدریس اغیزمن نه وي، د زده کوونکي د صلاحیتونو معلومات دې وشي، چې د هغه ذهن د علومو او فن د اخیستو څومره قابلیت لري، د نن وخت د ښوونې او روزنې ماهرین وایي، چې د نصاب د تدوینولو په وخت کې دې، د زده کوونکي عمر، قابلیت او تمایلات په نظر کې ونیول شي، دا خبره شپږ سوه کاله دمخه ابن خلدون کړې ده.

۶- د علومو حفظول

په هغه وخت کې به زده کوونکي مجبوریدل، چې مضامین حفظ کړي، د مضمونو مطلب او معنا به ورته نه ویل کیده، ابن خلدون ویل، هغه څه چې زده کوونکو ته ویل کیږي، باید تشریح کړل شي او مطلب یې ورته بیان کړل شي، تر څو د درس په اصلي روح باندې پوه شي.

## د تدریس طریقه

ابن خلدون د تاریخ د فلسفې د مؤسس او د ټولنپوه په حیث پیژندل کیږي؛ خو ددې تر څنګ هغه د ښوونې او روزنې یو ستر ماهر هم وه، ابن خلدون د تدریس ځینې دورې یا طریقې په لاندې ډول بیان کړي دي.

۱- علوم باید په تدریجي ډول زده کړل شي

ابن خلدون وايي، چې د درس د يادولو ګټوره طريقه داده، چې علوم په تدريجي ډول ياد کړل شي او هم درس بايد لږ، لږ په ذهن کې کينول شي، دا د ښووني تر ټول ګټوره لاره ده، کومه چې د انسان روحي غوښتنو ته ځواب ويلای شي، په دويم قدم کې بايد په اختلافي مسائلو باندې هم رڼا واچول شي، په دريمه مرحله کې بايد يوه پيچلې او مغلقه مسئله د تشريح او توضيح سره وړاندې کړل شي.

۲- په يو وخت کې يو فن

ابن خلدون په دې خبره باندې تاکيد کړی دی، چې په يو وخت کې بايد يو فن زده کړل شي، په يوه وخت کې بايد دوه علوم زده نه کړل شي.

۳- د اسان نه د مشکل په طرف

د ابن خلدون په نظر، زده کوونکو ته بايد لومړی اسان او بيا سخت مسائل بيان کړل شي، تر څو د ماشوم ذهن هغه طرف ته لاړ شي، نو د ماشوم ذهن به د مشکل سره بلد شي.

۴- د حساب تدريس

ابن خلدون د حساب په تدريس باندې ځکه تاکيد کړی دی، چې دا مضمون په ماشومانو کې درست او د فکر ښه طريقه پيداکوي او ماشومانو ته صلاحيت ورکوي، چې په يوه مسئله کې سوچ وکړي، حساب په ماشومانو کې د دليل ويلو قوت او طاقت پيداکوي.

۵- د مناقشې طريقه

د ابن خلدون په نظر، په علم کې د پرمختګ لاره په زده کوونکو کې د مناقشې (بحث او مباحثې) رامنځته کول دي او هغوی ته بايد داسې فرصت ورکړل شي، تر څو په عملي مسائلو کې مناقشه وکړي.

۶- په مورنۍ ژبه زده کړه ورکول

ابن خلدون په ښوونه او روزنه یو ښه معلم پیژندل کیږي، هغه په دې خبره تاکید کړی دی، چې د زده کړې پیل دې په مورنۍ ژبه باندې وکړل شي؛ ځکه، په بله ژبه کې د زده کړې لاسته راوړل د نیمایي زده کړې سره برابره ده.

۷- د دیني علومو تدریس

ابن خلدون وایي، چې د قران کریم تدریس دې په دریم منزل کې پیل شي؛ ځکه په لومړي سر کې د ماشوم ذهن بالغ نه وي، چې هغه وکولای شي، د قران کریم د ایات په مفهوم باندې په درست ډول پوه شي، اصول دین او اصول فقه دې، د قران کریم د زده کړې نه وروسته ورکړل شي، د اصول دین او اصول فقه نه وروسته ابن خلدون د حدیثو د زده کړې نوم اخیستی دی؛ ځکه په ماشومانو کې باید د لومړي سر څخه د ایمان قوي والی پیدا شي، تر وروسته ترې ښه اشخاص جوړ شي.

۸- د مجهول نه د معلوم په طرف

د ابن خلدون په نظر، د مجهول نه د معلوم په طرف تګ یو ښه تدریسي اصل دی، دا یو فطري اصل دی، چې ابن خلدون وړاندې کړی دی.

۹- د قران کریم ښوونه

ابن خلدون د قران کریم په ښوونه باندې تاکید کړی دی، په خپله مقدم نومي کتاب کې یې داسې ویلي، چې په اسلامي امت کې د قران کریم ښوونه یو دیني شعار دی او په ټولو ښارونو کې پرې عمل شوی دی، په دې سره د ماشومانو عقیده په قران کریم باندې قوي کیږي؛ ځکه کله چې ماشوم د قران په اساس وروزل شي؛ نو ټول علوم به د قران کریم په اساس لولي.

کوچنیان په لومړي سر کې ډېر ریښتیا ویونکي وي او د راتلونکي زده کړو لپاره یې اساس وي، هر هغه څه چې یې په زړه کې کینول کیږي، هغه یې د راتلونکي لپاره ریښه وي.

## د ښوونکي او زده کوونکي اړيکې

ابن خلدون د زده کوونکو په اړه ويلي، چې استادان بايد د زده کوونکو سره په همدردی سره مخامخ شي، که زده کوونکو ته په تشدد او جدي ډول زده کړه ورکړل شي؛ نو زده کړه به يې په زده کوونکي باندې هيڅ اغيز ونکړي.

هغه د ماشومانو په معقول تربيت باندې تاکيد کړی دی، هغه ددې خبرې سخت مخالف دی، چې د ماشومانو د تربيت په وخت استاد په زده کوونکو باندې تشدد کوي او د هغوی اخلاقي او عقلي شرف ته زيان رسوي.

ابن خلدون د محمد بن ابي زيد غوندې په ماشومانو باندې د شفقت مشوره ورکړې ده او همداسې امام غزالي هم په خپل کتاب احياء العلوم کې استادانو ته همدا مشوره ورکړې ده.

## د سزا ورکول طريقه

د ابن خلدون په نظر، د زده کړې په دوران کې کوچنيو ماشومانو باندې سختي او تشدد کول ډير زيان لري، د تشدد په کولو سره د هغوی زړه له زده کړې نه بديږي، هغوی د تشدد په زريعه دروغ ويل پيلوي، زده کوونکی مکر او فريب خپلوي، د تشدد په واسطه کورنۍ سره د ساتنې مينه يې ختميږي او په نورو باندې بوج کيږي.

چارلس عساوي په خپل کتاب کې، چې د مقدمې انګليسي ژباړه يې کړې ده، ليکلي، چې د جسمي سزا ورکولو لپاره مسلمانو پوهانو حدود ټاکلي وه، ابن خلدون د محمد بن ابي زيد سره په دې خبره موافق دی، چې ماشوم دې په يو وخت کې د دريو لښتو نه زيات نه وهل کيږي، د وهلو طريقه يې هم بيان کړې، چې په لاس دې ووهل شي، لښته بايد داسې نه وي، چې هډوکی مات کړي.

ابن خلدون وايې، ښه طريقه داده، چې زده کوونکو ته قران، حديث، قصص الانبياء او د دين د مشرانو د ژوند حالات بيان کړل شي، د استاد شخصيت بايد د زده کوونکو لپاره يوه نمونه وي.

## د علم په لاسته راوړلو کې د سفر اهمیت

د علم د لاسته راوړلو لپاره د وطن پرېښودل او د وخت د علماؤ سره کتل، علم ته ځلور ستوري لګوي، وجه يې داده، چې انسان کله علوم، اخلاق، د مذهبونو اړوند علم او نور کله د تعليم له لارې ترلاسه کوي او کله يې د خبرو له لارې لاسته راوړي؛ خو هغه څه چې د خبرو له لارې ترلاسه کيږي، هغه په پوخ ډول زده کيږي او په زړه کې ژور ځای نيسي.

څومره چې د استادانو سره نږدې وي، هغومر يې په مهارت کې استحکام منځته راځي، ځينې زده کوونکي فکر کوي، چې دا هم د علومو يوه برخه ده، چې د استادانو سره ډير نږدې وي، زده کوونکي د استادانو سره په نږدې اوسيدو سره مسائل ښه زده کوي، د ګټو او کمالاتو د ترلاسه کولو لپاره يو زده کونکي ته په کار دي، چې سفر وکړي، تر څو د مختلفو استادانو نه ګټنه (استفاده) وکړای شي.

ابن خلدون وايې، چې د علم د زده کړې د ترلاسه کولو لپاره سفر کول او د وتلو علماؤ سره کتل، بايد د يو لازم پروګرام په واسطه ترسره شي، د علم د زياتوالي او ژور کيدو لپاره سفر ډير اړين دی، بله اړينه خبره داده، چې د ښوونکو شمير هم د زده کوونکو په قابليت باندې اغيز لري؛ ځکه، نو زده کوونکو ته په کار ده، چې د خپل وخت د زياتو ښوونکو سره اړيکې ولري.

ابن خلدون وايې، چې د علم د لاسته راوړلو لپاره سفر کول اړين دي، د سفر په واسطه ترلاسه شوی علم د زيات وخت لپاره پاتې کيږي، د سفر په ذريعه د زده کوونکو د علم د قوت د مشاهده کولو قوت زياتيږي، نوې تجربې زده کوي او د غور او فکر عادت يې پخيږي.

د ابن خلدون په وخت کې د ليرې سفر کولو نه بغير د علم لاسته راوړل په بشپړ ډول سرته نه رسيدل او زده کوونکو به د علم د لاسته راوړلو لپاره سفرونه کول، په هغه وخت کې د هر سفري زده کوونکي لپاره په مدرسو کې د قيام او طعام ځانګړی انتظام موجود وه، په دې کې هيڅ شک نشته، چې انسان علوم، اخلاق او فضائل د کتابونو د مطالعې له لارې هم ترلاسه کولای شي؛ خو، د ښوونکو د مناقشې له لارې د علم لاسته راوړل او په مينه او محبت سره خبرې

کول، د کتابي مطالعې نه ډېر اغیزمن وي، په دې ډول په اسلامي تعلیمي نظام کې سفر ستر اهمیت لري.

## علوم

علامه ابن خلدون په خپل کتاب مقدمه کې د علومو لپاره یو فصل ځانګړی کړی دی، په دې فصل کې د هغه وخت د علومو په غرض او مفهوم باندې بحث شوی دی، د علامه دغه علوم افاقي حیثیت لري او سربیره پر دې د انسانانو لپاره ډېر ګټور دي.

په دې علومو کې ګټه ډیره موجوده وي، دا ټول علوم د انسانانو د روحي او مادي مسائلو د حل کولو لپاره کوښښ کوي.

د تمدنونو په اړه ابن خلدون وایې، چې تعلیمي کړنې هغوی ته ډیره ګټه رسوي.

ځکه، علم او تدبر د انسان ذهن، ټولنیز ژوند او روحي ژوند کې یووالی رامنځته کوي او دا د فطرت غوښتنه هم ده.

علم د عرفان سرچینه ده او عرفان د ژوند سرچینه ده او د دوی څخه لوړ د علم مفهوم دی.

د ابن خلدون له نظره، علوم د ټولنیز او کلتوري پرمختګ ښکارندوی دي، برعکس علمي جمود د ټولنې د انتشار او بربادۍ سبب ګرځي، د علمي تحریک موخه د حق ترلاسه کول دي، ددې علم وروستی غرض دادی، چې انکشافات او حقائق د یو نسل نه بل نسل ته انتقال شي.

ابن خلدون وایې، چې د هرې ډلې لپاره د ژوند او کائناتو نه د ګټې اخیستلو لپاره اړینه ده، چې د حقائقو نه ګټه واخلي، کنه نو د نه اخیستونکو قومونو زوال به پیل شي.

ځکه؛ نو، د مذهبي، کلتوري، ساینسي او فلسفي علومو زده کړه د ټولنې د هر وګړي لپاره ضروري ده، تر څو ټولنه د جمود ښکار نه شي او ټولنیز پرمختګ لا ګړندی شي.

## د علم زده کړه یو صفت دی

کله، چې یو انسان د علم د اصولو او قواعدو د اساساتو تر څنګ د یو علم جزیات زده کړي؛ نو، هغه انسان د علم ماهر شي؛ خو، کله چې هغه خپل زده کړی علم په عمل کې پلی کړي، بیا پرې پوره پوهیږي او د علم لاسته راوړونکی په خپل علم باندې عالم شي، د علم لاسته راوړونکی خپل ذهني صلاحیتونه او وړتیاوې استعمالوي او په ذکر شوي علم کې د کمال درجې ته رسیږي.

د علم زده کړه او د علم بل ته ښوول یو صفت دی، په علم کې د پوره برلاستیا لپاره په کار دي، چې زده کوونکي زیات وخت د علمي مسائلو پر مناقشه او مناظره باندې تیر کړي، په دې کار سره زده کوونکي په خپل علم او فن کې ماهر کیږي.

## د تضاد نظریه

ابن خلدون ښاري او کوچیانی صحرایي ژوند د یو بل سره په تضاد کې ښي، د ښارونو د اوسیدونکو مزاج، اوسیدل او روایات د کوچیانو خلک ستر توپیر لري.

په همدې لحاظ یې د یو نسل نه بل نسل ته د دواړو تمدونونو د ژوند علمي څیړنه کړې ده.

هغه وایې، کله، چې کوم صحرایي قوم ښارونه ونیسي او ښاري ژوند خپل کړي؛ نو بیا په تدریجي ډول د هغوی قوت پای ته رسیږي.

## د تصوف علم

په اسلام کې د شریعي علومو څخه یو هم تصوف دی، تصوف د سلفو د سترو اصحابو، تابعینو او د هغوی نه وروسته خلکو د هدایت او حق ته د تلو لاره ده.

دې علم اساسي اصل خپله ټوله توجه عبادت ته اړول دي او د دنیا د لذتونو سره اړیکه پریکول دي.

ځیني وایې، چې دا لفظ د صفې نه اخیستل شوی، چې د یوې جونیږې په معنا ده؛ خو، قیاس دا خبره نه تاییدوي.

د تصوف د علم خاوندان د علومو پېژندنه د ادراک له لارې کوي، په دې سره شک، وهم او نور له منځه ځي.

صوفیان وایي، روح چې په بدن کې پېژندل شوی دی، دا هغه شی دی، چې انسان ممتازوي.

د شریعت علم فقهاؤ او مفتیانو ته ځانګړی شوی دی، یعنې عبادات او معاملات د هغوی پورې تړلي دي او مجاهدې او محاسبې د صوفیانو پورې تړلي دي.

ځینې صوفیان مفتیان او مدرسې مني او ځینې یې نه مني، صوفیان د وحدت نظریې ته قائل دي، د صوفیانو په لیکنو کې د قطب لفظ هم لیدل کېږي، چې معنا یې د عرفانو خلکو مشر دی.

## د تعبیرالرویا علم

دا علم هم رامنځته شوی دی، زیات شمیر علماؤ پرې کتابونه لیکلي دي.

خوب او تعبیر کول یې، د نن په څیر په سلفو کې هم موجود وه، د اسلام نه مخکې هم په مختلفو قومونو او سلطنتونو کې یې موجودیت درلوده او د خوبونو تعبیرونه به یې کول.

کله، چې انسان د خوبه راپاځېږي؛ نو، وایي، چې نن مې خوب کې فلانی شی ولیده؛ خو، حقیقت دادی، چې خوب د یوې نه یوې پېښې سره تړلی وي.

## عددي علوم

حساب د عددي علومو یوه برخه ده، حساب یو علمي صنعت دی، ددې اساسي مسائل جمع، منفي، ضرب او تقسیم دي، دا ډیر لوی او ګټور علم دی.

پخوانیو ویلي، چې ماشومانو ته دې لومړی د حساب علم زده کړل شي، ددې علم زده کړه ډیره اړینه ده؛ ځکه، په هره معامله کې حساب ته اړتیا پیښیږي، د حساب علم په واضحو معلوماتو او منظمو دلایلو باندې سمبال دی، ددې علم په زده کړې سره، په عقل کې روښنایې او په نفس کې صداقت رامنځته کېږي.

هغه شخص چې په حساب کې ماهر وي، په هغه باندې به صداقت او رېښتينولي غالبه وي، هغه لپاره رېښتيا ويل د عبادت شکل خپلوي.

په هغه وخت کې په مغرب کې د حساب په اړه ښه کتاب د (الحصار الصغير) په نوم ليکل شوی وه، د حساب په اړه د ابن بناء مراکشي کتاب هم د يادولو وړ او د ښو کتابونو له جملې څخه دی، دا کتاب د عامو قاعدو لپاره جامع او ګټور کتاب دی، ابن بناء ددې کتاب شرح د (رفع الحجاب) په نوم ليکلې ده.

## الجبر

الجبر هم د اعدادو د علم يوه څانګه ده، په دې علم کې د مجهول عدد نه معلوم عدد راويستل کېږي.

عدد لومړی درجه لري؛ ځکه، په دې سره مجهول عدد تعينيږي، کوم چې د خاص نسبت نه راويستل کيږي، دويمه درجه د شي ده؛ ځکه، هر مجهول يو شی دی او جذر هم وي، په دويمه درجه کې ضعف لازم دی، دريمه درجه د حال ده، ددې درجو نه وروسته نمبر د نورو مجهولاتو دی او هغه دوه مضربونه دي.

په الجبر کې، هره پوښتنه د دوه يا زياتو مختلفو شيانو تر منځ مساوات رامنځته کوي او حلوي يې، په دې ډول د يو شي د بل شي سره مقابله وي او کسرونه په درست ځای کې راوړل کيږي، کله، چې د دواړو تر منځ مساوات رامنځته شي؛ نو، پوښتنه حل شي.

د الجبر لومړی ليکوال ابوعبدالله خوارزمي دی، د هغه وروسته ابو کامل شجاع بن اسلام دی، سربيره پر دې نورو هم د الجبر د علم اړوند کتابونه ليکلي دي، چې په ټول کې وتلی او ښه کتاب (کتاب القرشي) دی.

## رياضي او هندسه

په دې علم کې د يوناني پوه اقليدس کتاب وتلی دی، دا کتاب په عربي ژبه هم ژباړل شوی دی، دا کتاب په (کتاب الاصول) او (کتاب ارکان) باندې هم مشهور دی، دا کتاب د هندسې د علم د زده کړې لپاره ډير ګټور دی، دا کتاب څو کسانو

ژباړلی دی، ددې کتاب یوه ژباړه ابوجعفر منصور هم کړې ده، یوه حنین بن اسحاق هم کړې ده، یوه ثابت بن مقره او یوه هم یوسف بن حجاج کړې ده.

دا کتاب ډېر اختصار شوی هم دی، چې ابن سینا په خپل کتاب (تعالیم شفا) کې یو فصل ددې لپاره ځانګړی کړی دی.

ابن الصات هم ددې اختصار د (کتاب الاقتصار) په نوم کړی دی، زیات خلکو شرحې هم لیکلي دي، چې همدغه کتاب د ریاضي او هندسې لپاره سرچینه شمیرل کیږي.

د ریاضي په واسطه په عقل کې روښنایې او فکر کې استقامت رامنځته کیږي؛ ځکه، د ریاضي په واسطه ترتیب، روښانه نظم رامنځته کیږي او د غلطیو امکان ډېر نه وي.

ددې فن یوه څانګه د کروي اشکالو پورې ځانګړې شوې ده، دویم څانګه یې د مخروطي اشکالو پورې تړلې ده.

مساحت هم د ریاضي یوه برخه ده، د انجینرۍ علم تر هغه وخته نه شي بشپړیدای، تر څو د ریاضي او هندسې علم یې پوره نه وي یاد کړی.

په دې موضوعاتو باندې یونانیانو زیات کتابونه لیکلي دي، په مسلمانانو کې ابن الهیثم په دې موضوع کې زیات کتابونه تألیف کړي دي.

## د منطق علم

د منطق علم داسې علم دی، چې د ماهیت د ترلاسه کولو لپاره دلایل په کې ویل کیږي.

اصلا د حسونو ادراک په ټول حیواناتو کې مشترک دی، که هغه ناطق وي که غیر ناطق.

په یونان کې ارسطو د منطق د علم مسائل ښه وڅیړل او منطقي مسائل ترتیب او په فصلونو باندې یې وویشل او دغه فن یې د حکمت د علم سرچینه وټاکله.

په دې وجه ارسطو ته لومړی معلم وايي، د ارسطو د منطقو د کتاب د علم نوم (نص) دی، چې په اتو فصلونو باندې يې ويشلی دی، په دې کتاب کې څلور کتابونه د قياس په اړه دي او څلور د قياس د مادې په اړه دي.

د يونان پوهانو د منطق په علم ډېر کار کړی دی، ددې ټولو يوناني کتابونو ژباړه عربي ژبې ته شوې ده او مسلمان فلسفيانو په دې باندې شرحې هم ليکلي دي، په دې شرحه ليکونکو کې فارابي او ابن سينا د ځانګړي نوم خاوندان دي، په اندلس کې ابن رشد د يادولو وړ شخص دی او ډېرې ښې شرحې يې ليکلي دي.

امام فخرالدين رازي او فضل الدين خونجي هم د منطقو د علم اړوند ډېر ښه اثار ليکلي دي.

## د طبيعاتو علم

د طبيعاتو علم د اجسامو د حرکت او سکون په اړه بحث کوي، په دې کې فلکي اجرام او ځمکه هم تر څېړنې لاندې نيول کيږي.

په دې علم کې وريځې، ګرد و غبار، د ثقل قوه او د زلزلو په اړه بحث کيږي.

پخوانيو د ارسطو ليکل شوی کتاب د طبيعياتو د علم په اړه ښه او مهم کتاب ګڼلی دی، دا کتابونه عربي ژبې ته هم ژباړل شوي دي او مسلمان فيلسوفانو هم په دې فن کې زيات مسائل څېړلي او شرحې يې پرې ليکلي دي.

ابن سينا د ارسطو د کتاب لنډيز ليکلی او ځينو زياتو مسائلو ترديد يې هم کړی دی، سربيره پر ابن سينا په اندلس کې ابن رشد هم ددې کتاب خلاصه ليکلې ده؛ خو، په دې کتابونو کې د ابن سينا کتاب (الاشارات) ته په نړۍ کې زيات اهميت حاصل دی او په ټوله نړۍ کې ورته د قدر په سترګه کتل کيږي، د ابن سينا د ذکر شوي کتاب تر ټولو ښه شرحه امام فخر الدين رازي ليکلې ده او وروسته نصيرالدين طوسي هم يوه شرحه وليکله.

## د طب علم

په دې علم کې د انسان پر صحت او ناروغتيا باندې يې بحث کيږي.

يو طبيب د صحت اړوند د درملو په ساتنه او غذا باندې تأکيد کوي.

يو ماهر طبيب ددې خبرې معلومات کولای شي، چې ناروغتيا د بدن په کومه عضو کې ده، هغه د ناروغتيا علتونه هم معلوموي، د هغې وروسته د درملو د خوړولو هم وايې.

د طب په علم کې د اعضاؤ ګټې هم داخلې دي، ددې مطلب دا دی، چې د انسان د بدن داخلي اعضاء انسان ته کومې ګټې رسوي.

پخوانې پوهان جالينوس د طب د پوهانو امام بولي او د حکيم جالينوس څو کتابونه عربي ته ژباړل شوي دي، د طب په علم کې د حکيم جالينوس کتابونه معياري ګڼل شوي دي، همدا وجه ده، چې حکيمان د هغه کتابونه خپلې مخې ته ږدي او عمل پرې کوي.

په اندلس کې ابن زهر او ابن رشد وتلي حکيمان وه، موږ ته معلومه شوې، چې په کليو کې هم د طب علم موندل کيږي، داسې علم د نورو پر تجربو باندې ولاړ دی، په کليوالي طب کې طبي قوانين په نظر کې نه نيول کيږي.

د نباتاتو علم هم د طب پورې تړلی دی، ابن عوام څو يوناني کتابونه عربي ته ژباړلي دي، د نباتاتو علم ډير ګټور دی، په ټولو طبي درمل جوړولو کې د بوټو څخه کار اخيستل کيږي.

## ابن خلدون او د جغرافيې علم

ډاکټر ار جی مارتهر کوم چې د پنسلوانيا پوهنتون د جغرافيې د ديپارتمنت مشر دی، وايې، چې ابن خلدون چې کومه جغرافيه بيان کړې ده، د هغې اساسي اصول دي او موږ د ابن خلدون د وخت پورې د هغه غوندې جغرافيه پوه نه وينو.

### ځمکه ګرده ده

د کائناتو په اړه د پوهانو د کتابونو نه داسې معلوميږي، چې ځمکه ګرده ده او د اوبو د عنصر نه رامنځته شوې ده، کله چې خدای تعالی په ځمکه باندې

حیوانات پیداکول؛ نو، انسان ته یې په ټولو باندې د مشرۍ حق ورکړ، کله، چې یې ځمکه ودانوله؛ نو، د ځمکې د ځینو برخو نه یې اوبه لیرې کړې، د ځمکې لاندې مرکزي نقطه یې مرکز دی او د ځمکې ټول اطراف ددې ثقل د مرکز د کشش د قوې په واسطه په دې پورې تړلي دي.

## د ځمکې نیمه برخه خلاصه ده

د ځمکې هغه برخه، چې اوبه ترې لیرې کړای شوي دي نیمه برخه ده او اوبو ځمکه د هرې خوا نه احاطه کړې ده، هغه سیمې ته بحر میت وایې، یوه عجمي برخه او بله یې اقیانوسي برخه ده، چې دې سیمې ته بحر اخضر اسود هم وایې.

## د ځمکې څومره برخه ودانه شوې ده

د ځمکې نیمه برخه اباده ده او نوره یې نه ده اباده شوې، وران ځایونه د جوړ شویو ځایونو څخه زیات دي، د ځمکې جنوبي برخه نسبت شمالي برخې ته زیاته ورانه ده، اباده برخه د شمال طرفه زیاته ده، جنوب خوا ته غرونه او بحرونه ډیر دي.

ځیني خلک وایې، چې د ځمکې زیاته برخه اوبه نیولې ده.

په دې ډول د ځمکې یو پر څلورمه برخه اباده شوې ده.

د روم د بحیرې موقعیت

د جغرافیي پوهان وایي، چې د بحر میت نه لویدیځ خوا ته د روم بحیره پرته ده، دا سیمه د طنجه او طرین د ۱۲ میلو د فاصلې نه پیل کیږي، بیا مخکې ځي او پراخیږي، د شام ساحل هم دلته پروت دی، د اسکندریي پورې د برقې ساحل پروت دی، په شمال کې یې د قسطنطیني ساحل پروت دی، ددې وروسته بنادقه، روم او بیا د انګلستان ساحلونه پراته دي، د هغو وروسته د اندلس بحر راځي، کوم چې د طرین پورې اوږد پروت دی، په دې کې څو جزیرې دي، لکه کریټ، قبرص، سیسلي او نور.

## د قسطنطنیې خلیج

د بحر میت په شمال کې د دوو بحرونو نه دوه جلیجونه پراته دي، یو د قسطنطني په سیمه کې، دا د دریو سمندرونو نه تیریږي او بیا د څلورو میلو څخه ۶۰ میلو ته مخ په وړاندې ځي، دې ځای ته د قسطنطني خلیج وایې، بیا د ختیځ طرف ته ځي او د هرقلې د سیمې ته تیریږي او خزریه (قزوین) ښار ته رسیږي او همدلته یې پای دی، ددې ځای اوږدوالی ۱۳ میله دی.

ددې خلیج په غاړه روم، ترکیه، برجان او روس پراته دي.

## د بنادقې خلیج

د روم د بحیرې دویم خلیج نه دویم سمندر د روم د سیمې شمال ته پروت دی، بیا د غرونو نه راوځي او د لویدیځ طرف ته د بنادقې ښار خوا ځي، بیا ۱۱۰۰ میله سفر کوي د انکلایه د ښارونو نه وځي او پای ته رسیږي، په دې ځایونو کې د بنادقو او رومي قومونو خلک اوسیږي، ځکه دې خلیج ته د بنادقې خلیج وایې.

## د چین، هند او حبشې بحر

د شمال طرف ته ۱۳ میله لیرې، یو ستر بحر پروت دی، د جنوب طرف ته لومړي اقلیم ته رسیږي، بیا همدا اقلیم لویدیځ طرف ته تاویږي، ددې اقلیم پنځه برخې دي، په پنځمه برخه کې یې د حبشو او زنګیانو د باب المندب ښارونه دي، چې سمندر همدلته پای ته رسیږي.

دې ځای ته د چین، هند او حبشې بحر وایې، په دې ځای کې زنګیانو او د بربرې د ښار مرکز امرءالقیس هم پروت دی، په شمال کې یې چین، هند، سند او بیا احقاف او زبیده پراته دي، چې دا وروستي یې یمني سمندرونه دي، ددې وروسته د حبشیانو هیواد پروت دی.

## د قلزم بحیره

د حبشې د بحر نه دوه نور بحرونه هم راوځي، یو یې د باب المندب سره نږدې دی، دا د شمال نه لویدیځ طرف ته پرمخ ځي، ۱۴۰۰ میله مخکې ځي او بیا د پنځم اقلیم سره پای ته رسیږي، چې دې ځای ته د قلزم بحر او د سویز بحر وایي.

په ختیځ سمندر باندې یمن، حجاز او جده پراته دي، په اخر کې یې مدین، امله او فاران دي، دویم طرف ته یې د حبشو ښارونه دي.

## د فارس خلیج

د حبشو د بحر نه دویم راوتي سمندر ته د اخضر خلیج وايي، دا د سند او احقاف د منځ نه راوځي او د شمال خوا روان وي.

د جنوب خواته یې، سند، مکران او د کرماني فارس سواحل پراته دي، لویدیځ طرف ته یې، بحرین، یمامه، عمان او شحر اباد دي، په ابتداء کې یې یمني احقاف دي.

## د عربو جزیره

د عربو جزیره د قلزم او د فارس د بحیرې په منځ کې پرته ده، په جنوب کې یې د هند بحر په لویدیځ کې یې د قلزم بحیره او ختیځ طرف ته یې د فارس بحیره پرته ده.

د عربو جزیره د شام او بصرې نه تر عراق پورې پرته ده، کوفه، قادسیه، او بغداد په همدې برخه کې پراته دي، سربیره پر دې د حجاز، یمامې، او د یمن جنوبي خوا ته پراته دي.

د عربو زیاته ساحه صحرایي ده او ددې ځای د سیمو اوسیدونکي د خپل پخواني روایات ساتلي دي.

## د جرجان او طبرستان بحرونه

ددې نړۍ شمالي برخې ته د ویلم سیمه پرته ده، ددې د ټولو سمندرونو نه یو جلا سمندر دی، یو ته د جرجان یا طبرستان بحر وايي، ددې اوږدوالی ۱۰۰۰ میله او عرض ۶۰۰ میله دی، په لویدیځ کې یې اذربایجان، ویلم او په ختیځ کې یې د ترک او خوارزم سیمې پرتې دي، په جنوب کې یې طبرستان او په شمال کې یې د خزرولان سیمه پرته ده، دا ټول هغه مشهور سمندرونه دي، ذکر یې د جغرافي علماؤ کړی دی.

## د نيل دريا

دغه دريا د شمال نه جنوب خواته بهيږي، د نوبې نه وروسته د مصر د ښارونو نه تيريږي او دلته په زياتو څانګو باندې تقسميږي، دا د روم د بحيرې سره نږدې د سکندريې په سيمه کې بحر ته توييږي، په ختيځ کې يې صعيد او لويديځ کې يې الواحات پراته دي، دويمه دريا د لويديځ طرف ته مخ کوي، دې دريا ته د سوډان دريا وايي، ټول سوډاني اقوام ددې دريا په غاړو باندې اباد دي.

## د فرات دريا

دا د پنځم اقليم شپږمه برخه ده، دا د ارمنيا د غرونو نه سرچينه اخلي او جنوب خواته د روم د سيمو نه تيريږي، او د صفين، رقحې، کوفې، بصرې پورې رسيږي او بيا د حبشو په بحر کې توييږي، ددې دريا شاوخوا سيمې ډيرې شنې دي.

## د دجلې دريا

دا دريا هم د ارمنيا د غرونو نه سرچينه اخلي، په جنوبي برخو کې د موصل، اذربايجان او بغداد نه تيريږي، دلته په څو څانګو باندې ويشل کيږي.

## د جيحون دريا

د دريم اقليم اتمه برخه ده، ددې سرچينه په بلخ کې ده، دا د جنوب نه د شمال طرف ته بهيږي او خراسان ته رسيږي، ددې وروسته ته خوارزم ته رسيږي او بياد جرجان په بحر کې توييږي.

د جيحون په دريا کې د خراسان او خوارزم سيمه پرته ده، په ختيځ کې يې د بخارا، سمرقند او د ترمذ سيمې پرتې دي.

دا ټوله جغرافيه بطليموس په خپل کتاب (زخار) کې ذکر کړې ده، هغه په خپله جوړه کړې نقشه کې د نړۍ د غرونه، سيندونه او ميدانونه هم ښودلې دي.

## د نړۍ ابادي

## لومړی او دویم اقلیم

وتلی څیړونکی فرانزروزن تهل په ۱۹۶۷ ز کال کې یو کتاب (An Introduction To History) ولیکه او د تاریخ پیژندنه یې په کې کړې ده، لیکلي یې دي، چې په ټولنپوهنه، اباد‌ۍ او د اوسیدو د ځایونو په اړه د ابن خلدون نه پوه شخص ماته بل په نظر کې نه ښکاري، هغه چې د ټولنپوهنې او ابادۍ په اړه څه لیکلي دي، هغه وروستی خبرې دي.

ابن خلدون ابادي او جغرافیه په ډېر علمي انداز کې وړاندې کړې ده او خپل معلومات یې په سانسي انداز کې ترتیب کړي دي، هغه خپل معلومې جغرافیي په حواله موږ ته وا یي، چې نړۍ ګرده ده او په دې کې اووه براعظمونه (لویې وچې) دي او هغه دغه لویې وچې په اوو اقلیمونو باندې ویشلي دي او د هرې لویې وچې ابادي یې ذکر کړې ده.

ابن خلدون د دویم او دریم اقلیم په اړه وایي، چې په دې سیمو کې ځنګلونه، ورانۍ او ریګستانونه ډېر زیات وي، ځکه په دې سیمو کې بادي ډېره کمه وي، ددې دواړو اقلیمونو جنوبي برخې نه دي ابادې شوې؛ ځکه، هلته د ګرمۍ شدت زیات دی، د همدې په وجه وچکالي او د اوبو کموالی وي او غربت او افلاس ډېر موجود وي.

## دریم اقلیم

په دې سیمو کې د نړۍ د نورو سیمو په نسبت شپې او ورځې اوږدې وي، ورځ په کې ۱۴ یا ۱۵ ساعته وي، ددې سیمو جنوبي برخې هم څه نا څه ابادې وي، دلته خوشالي هم دومره زیاته نه وي؛ خو، په جنوبي برخو کې د اوبو اندازه زیاته وي، په دې اقلیم کې مصر او قاهره شامل دي.

## څلورم اقلیم

دا اقلیم د دریم اقلیم سره په شمال کې ملاویږي، د خضر جزیره د مجاز قصر یې په جنوب کې پراته دي، په دې اقلیم کې زیاتې جزیرې او د سیسلي سیمه پرته ده، په دې اقلیم کې د لویدیځ زیاتې سیمې او هیوادونه شامل دي.

## پنځم اقلیم

ددې اقلیم په جنوب کې اندلس پروت دی او د سمندر نه تیریږي او په ختیځه سیمه کې یې څو جزایر پراته دي، په دې اقلیم کې د ترکانو سیمه هم راځی.

## شپږم اقلیم

په دې اقلیم کې د انګلستات جزیره او د لویدیځ زیات هیوادونه او ښارونه شامل دي، د شمال خواته د روسیي ابادي پرته ده، بلکه په جنوب لویدیځ کې د قسطنطنیي ښار پروت دی.

## اووم اقلیم

په دې اقلیم کې د روسیي ځینې سیمې واقع دي، دا برخه د جنوبي قطب پورې رسیدلې ده او په دې ځای کې ابادي د نشت په برابر موجوده ده؛ ځکه، ددې اقلیم زیاته برخه واورو پوښلې وي.

## په انساني رنګ باندې د اقلیم اغیزې

موږ په جغرافیه کې ذکر کړل، چې په شمال کې زیاته یخني وي، بلکه په جنوبي سیمو کې زیاته ګرمي ده؛ خو، منځنی برخې معتدلې دي، په دې سیمو کې اوسیدونکي خلک زیات معتدل مزاجه وي، په علومو او فنونو کې همدغه خلک پرمختګ کوي، دا خلک د نرم مزاج لرونکي دي، ښکلي عمارتونه جوړوي، بهترین لباسونه اغوندي، ددې سیمو د خلکو اخلاق ډیر لوړ وي، په دې سیمو کې حیوانات او میوې هم د اعتدال لرونکي وي.

## د ګرمو سیمو اوسیدونکي نیمه وحشي وي

هغه اقليمونه چې د معتدل والي څخه ليرې دي، خلک يې هم په ټولو حالتونو کې د اعتدال نه ليرې وي، د هغوی کورنه د خټو او بانډسونو نه جوړ شوي وي، د هغوی خوراک جوار او واښو ته ورته شيان دي.

د اعتدال نه د ليرې والي په وجه ددې خلکو مزاج او اخلاق د حيواناتو سره تقريبا ورته وي؛ ځکه، نو نيمه وحشي وي، په دې خلکو کې د صنعت او فن هيڅ رواج موجود نه وي.

## حوالې:

١- ډاکټر طه حسين کا فرانسيي مقاله، ١٩١٧ ز د ابن خلدون سوانح، د فرانسې چاپ

٢- د اکبر احمد مقاله (تهذيب اور تهذيب کا سمجهنا) مقدمه ابن خلدون – ٢٥ مخ، جرنل مطبعه فرانس

٣- ډکشنري اف مسلم نيمز – صلاح الدين احمد، هارټس مطبعه، لندن.

۴- ايم ای عنان – د ابن خلدون سوانح ، د مصر چاپ ١٩٢٥

۵- C.F Seybol D د لندن چاپ

۶- د ابن خلدون د مقدمې تشريح، اوويس مطبعه ١٩٩٥، نيو يارک پوهنتون

٧- عبدالمحاسن ابن تغری بيروی – سوانح ابن خلدون

٨- دې فادر اف اکنامکس اينډ عرب سولايزيشن – اوويس نيو يارک پوهنتون چاپ ١٩٨٨

٩- چودهوين صدي کا ماهر معاشيات ابن خلدون - جين ډيوډ- جرنل مطبعه

١١- کتاب العبر – ابن خلدون

١٢- د پروفيسور ډاکټر طه حسين د پي ايچ ډي مقاله- مترجم مولانا عبدالسلام ندوي، عظم ګرهـ مطبعه ١٩۴٠

۱۳- ابن خلدون او اسلامي ساینس – محمد عبدالله ۲۰۰۷ چاپ

۱۴- سروی ان دی ډوپلمنټ اف هسټري، ساینس اینډ اکنامکس – محمد خواجه – اغا خان پوهنتون

۱۵- هسټرو ګرافي اینډ اسلامک سکالر – ۲۰۰۸ اغا خان پوهنتون

۱۶- مسلم سکالرز او ابن خلدون – اغاخان پوهنتون ۲۰۰۸

۱۷- Debate God attrebutes with Mutazilah and ibni Kheldon, the Gnostus Encyclopedia

۱۸- انټروډکشن اف هسټري او مقدمد ابن خلدون – محمد خواجه اغاخان پوهنتون

۱۹- The Islamic Concept of knowledge Quarterly Journal of Islamic Thought and Culture, By Dr. W.S Akhtar